مومند
خپرندویه ټولنه

# ارماګدون

((درېیمه نړیواله جګړه))

**لیکوال: استاد امین محمد جمال الدین**

((د مصر په الازهر پوهنتون کې د اسلامي دعوت او فرهنګ استاد))

**ژباړن: نجیب الله نایل**



ارماګدون: درېیمه نړیواله جګړه
لیکوال: استاد امین محمد جمال الدین
ژباړن: نجیب الله نایل

# آرماګدون

((د ربیمه نړیوال جګړه))

لیکوال: استاد امین محمد جمال الدین
((د مصر په الازهر پوهنتون کې د اسلامي دعوت او فرهنګ استاد))
ژباړن: نجیب الله نایل

## لیکي پوهه:

د لیکي نوم: ارماګدون ((درېیمه نړیواله جګړه))

لیکوال: استاد امین محمد جمال الدین

پاړسي ژباړن: احمد محمدي

پښتو ژباړن: نجیب الله نایل

اړیکشمېره: ۰۷۷۸۸۱۷۲۵۷

برېښلیک: afghan.najib@gmail.com

ویبلاګ: رسنی www.tolafghan.com/rasanay

کمپوز او ډیزاین: په خپله ژباړن

چاپزیار: محمد ابراهیم ابراهیمي

خپرندوی: مومند خپرندویه ټولنه- جلال اباد

د خپرونو لړ: (۵۱)

چاپشمېر: ۱۰۰۰ ټوکه

چاپنېټه: ۱۳۸۷ لمریز کال

چاپځی: د مومند خپرندویې ټولنې تخنیکي څانګه



## د ترلاسه کولو پتې:

عبدالمجید مومند کتابپلورځی، مخابراتو څلورلارې، جلال اباد- افغانستان

اړیکشمېرې: ۰۷۰۰۶۲۶۱۶۱ - ۰۷۷۷۶۲۶۱۶۱

برېښلیک: amb_diamond@yahoo.com

هارون کتابپلورځی، اسحق زی مارکېټ، بزازۍ څلورلارې، جلال اباد- افغانستان

نوی کابل کتابپلورځی، بورډ بازار- کوزه پښتونخوا

# ډالۍ،

دغه کتاب د خپل کوران او درانه پلار حاجي رئیس خان سپېڅلې اروا ته ډالۍ کوم، هغه چې تل یې زما په روزنه او پالنه کې نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کړي دي.

**نایل**

# نیولیک

| گڼه | سرلیک | مخګڼه |
|---|---|---|
| (۱) | د خپرندویې تولنې یادښت | الف-ب |
| (۲) | د مبارکې نبوي ژمنې (امامت) د پلې کېدلو شیبې | ج-و |
| (۳) | لا په لار کې د بر د مینې | ز-ح |
| (۴) | د ژباړن سریزه | ط-ل |
| (۵) | د لیکوال سریزه | ۱ |
| (۶) | لنډه خبرنه | ۴ |
| (۷) | د غوره کتابونو لیکلړ | ۱۰ |
| (۸) | یادونه | ۱۲ |
| (۹) | بحث تر ننوتو وړاندې د درېیو ټکو څرګندونه | ۱۳ |
| (۱۰) | لومړنۍ چاره | ۲۲ |
| (۱۱) | دویمه چاره | ۲۳ |
| (۱۲) | **لومړۍ برخه** | ۲۵ |
| (۱۳) | د پالونکي او بېنونکي رب په مرسته د خپرکي خبرنه | ۲۷ |
| (۱۴) | له کوېټ سره د عراق جګړه (پټ پایلات) | ۲۸ |
| (۱۵) | د امریکایانو پر لور د کوېټ د واکمن تېښته او له روم څخه مرسته تر لاسه کول | ۳۴ |
| (۱۶) | د ګډو (متحدو) خواکونو په وسیله د عراق سرکوبول او وروسته | ۳۶ |
| (۱۷) | په دغه هکله راغلي یا راوړل شوي روایتونه | ۳۷ |
| (۱۸) | **دویمه برخه** | ۴۱ |
| (۱۹) | ای، اسلامي امته! | ۴۳ |
| (۲۰) | د تورو توغونو د څښتنانو راڅرګندېدل (په افغانستان کې طالبان) | ۴۵ |
| (۲۱) | د تورو توغونو د سرکوبولو لپاره له خپلو توغونو سره د لویدیځ راتلل | ۴۹ |
| (۲۲) | هغه نښې‌ښرونه (آثار) او روایتونه چې د لویدیځ د لښکرکشۍ بیانوونکي دي | ۵۰ |
| (۲۳) | ((ګوډ)) بولندوی او د سویس له کانال څخه د لویدیزو خواکونو تېرېدل | ۵۲ |
| (۲۴) | په دغه هکله یو لړ حدیثونه او روایتونه | ۵۳ |

# د مبارکې نبوي ژمنې (امامت) د پلي کېدلو شيبې

په دې کې به هيڅوک شک ونکړي چې د اسلام له سپېڅلي دين پرته د ژوند داسې هراړخيز قانون نشته چې د بشريت مانوي لاربښوونه وکړي، دا سمه ده چې له اروپا او امريکا سره وژونکې زهرجنې وسلې شته او درېيم قيامت (درېيمه نړيواله جګړه) هم رامنځته کولی شي، خو داسې يو نړيوال پيغام نه لري چې تر شا يې د لويديځ ماشين وهلي ارام واخلي او ختيځوال له غلامۍ وژغوري. بلکې برعکس دا دی، وينو چې لويديځ په نړۍ کې د جنګ اور بل کړی او سترې نړيوال دې ته سترګې پر لار دي چې کله به يو ستر ناجي له الهي پيغامه سره راځي او نړۍ به د زور او زرو د واکمنانو له بدمستيو ژغوري. دا پيغام د اسلام سپېڅلی دين دی او ناجي يې د نبوي مبارکې کورنۍ بختور بچی ((امام مهدي)) دی چې ګردو اسماني اديانو يې تصديق کړی او د اسلام د ستر پيغمبر عليه الصلوة و السلام مبارکو حديثونو يې په څرګندو ټکو وړاندوينه کړې ده.

آرماګدون يا درېيمه نړيواله جګړه د مصر د نوميالي عالم استاد امين محمد جمال الدين ليکنه ده چې له ډېرو معتبرو او متفق عليه اخځونو څخه په کې ګټه اخيستل شوې او همدغسې د ډېرو نويو او حيرانوونکيو سرچينو يادونه هم کوي چې تر اوسه لاد چا پام وراوښتی نه دی. لکه د يهودو او نصاراوو په کتابتونونو کې د اسلام د ړومبيو شېبو د علماء کرامو داسې آثار هم شته چې د مسلمانانو د نفاق او کمزورۍ له

امله ترې تروړل شوي او د اوسني وخت مسلمان ترې خبر هم نه دی، خو هغوی ترې ګټه اخلي.

د پیغام او محتوا د افاقیت او ستر تابه له اړخه دا آثر دومره ارزښتمن دی چې په یوه کمزوري او نهیلي مسلمان کې لکه چې دا اوس یو، هم د غورځنګونو، هیلو او پاڅونونو ولولې پوکلی شي او لکه د اردو ژبې د لومړني نقاد عالم او شاعر مولانا حالي (رح) مسدس چې هندي مسلمانانو په یادو یاد کړی ؤ، د مسلمانانو د انحطاط په دې ځوروونکیو شېبو کې د الله جل جلاله پر وړاندې تر دې لوی عبادت کوم او د خپلي، خو نه اېلېدونکي افغان ولس لپاره ترې ستره ډالۍ کومه ده؟ زما یقین دی چې دا آثر د لیکوال او ژباړونکي د بقا انځور او مؤمنې پرګنې به په زړونو کې ځای ورکړي. ښایي، د ستر ستانه حضرت حمزه بابا (رح) دا دعا قبوله شوې وي، چې:

**په تبجنه زمانه کې د حالاتو زګېروي اورم**

**ته حکمت زما د خضر (ع)، اندېښنه د اپلاتون کړې**

د دعا د اجابت ځرک له همدې ښکاري چې تبجن لا څه چې په ډالر وهلي دور کې هم لا داسې شازلمي شته چې پر خپلو قلمونو د جهاد بهیر څپاند ساتي او دې ته خیر دي چې پر کوکنارو بندیز شته، خو پر شرابو نه. همدغسې هغه تسمم او زهر چې په ټولنه کې تلویزیون، خپروني او بیا په تېره دغه لنډې کیسې چې ګام پر ګام له جنسي چاودنو پرته بل پیغام نه لري، د کوم هدف پر بنسټ ورته خمکه هوارېږي. دا د دې لپاره چې د بیرغونو د سیمې زړه، ذهن او اسمانځکې ارادې ترور کړي.

# د خپرندويې ټولنې يادښت

آرماګدون (هرمجدون) يا عبراني ويی دی چې (هر) د غره په مانا او (مجيدو) په فلسطين کې د يوې سيمې نوم دی، نو موخه يې ترې د مجيدو غر دی.

دا کتاب اوسنيو حالاتو ته په کتو سره د الازهر پوهنتون استاد امين محمد جمال الدين په عربي ژبه ليکلی، په کتاب کې ليکوال څېړنه کړې چې روانه جګړه، کومه؟ د چا؟ او ولې ده؟ ليکوال لومړۍ نړيوالې جګړې ته مهمه کتنه کړې او روان سياسي حالات او جګړې يې څېړلي او بيا يې دا په ډاګه کړې چې دا درېيمه نړيواله جګړه ده او د صحيحو حديثونو او د قرآن شريف په رڼا کې يې دلايل وړاندې کړي دي.

لنډه دا چې د قيامت د راتګ او نږدېوالي په اړه په دې کتاب کې بشپړ معلومات شته، نو د دې په رڼا کې هر څوک کولای شي چې پر دې پوه شي چې دا روانه جګړه کومه جګړه ده، د څه لپاره پيل شوې ده او له داسې نورو ټکو پرده پورته کوي.

دا کتاب څه موده وړاندې په هرات کې د احمد شاه ابدالي خپرندويې ټولنې له اړخه په دري يا پارسي ژبه ژباړل شوی ؤ چې څو- څو ځلې چاپ شو او ډېر لوستونکي لري، د ډېرو لوستونکيو او ليکوالو په بيا- بيا ټينګار سره چې دا ډېر مهم او ارزښتمن کتاب دی، بايد پښتو ته هم وژباړل شي؛ نو دې ستړې چارې ته د ننګرهار تکړه ژورنالېست، ليکوال او شاعر نجيب الله نايل سينه وډبوله چې پښتو ته يې وژباړي. د ښاغلي

نجیب الله دا لومړی ژباړه ده چې په کتابي بڼه خپرېږي، نوموړی پر خپله ژبه ډېر ښه پوهېږي؛ دا ژباړه يې هم په ښه هنري انداز او کره ډول ترسره کړې ده او تر ډېره يې هڅه کړې ده چې د حديثونو او آيتونو په ژباړو کې له ديني علماوو سره سلا مشوره وکړي او د آيتونو او حديثونو سمه او کره ژباړه وکړي او کره مرجع يې څرګنده کړي.

مومند خپرندويه ټولنه وياړي چې د نجيب الله نايل پر مټ د آرماګدون ژباړل شوی آثر خپروي، د دې تر څنګ هوډ لري چې په داسې نور علمي او څېړنيز آثار خپاره کړي. پاتې دې نه وي چې ښاغلی نايل د مومند خپرندويې ټولنې د تخنيکي څانګې همکار هم دی چې په خپلو هنري ګوتو يې ډېر کتابونه پسوللي دي. پر دې سربېره نايل نورې څېړنيزې ژباړې هم کړې، انشاءالله په بشپړېدو سره به يې د مومند خپرندويې ټولنې له اړخه ډېر زر په کتابي بڼه خپرې شي.

په پای کې مومند خپرندويه ټولنه نايل ته د دې ګټورې ژباړې د چاپېدو له امله مبارکي وايي او د الله جل جلاله په دربار کې ورته لاسونه لپه کوي چې نورو داسې کارونو کې برلاسی شي چې خپلې ټولنې ته رښتينی خدمت وکړي.

امين

**مومند خپرندويه ټولنه**

زه خو د ښاغلي نايل او د ده د همزولو شازلميو دغسې زيار د خپلو دښمنانو پر وړاندې د دفاع ړومبی او ډېر کلک کمربند ګڼم چې هیڅکله به ماتې ونه مني، همدغسې په دې ویاړ کې مومند خپرندویه ټولنه د خپلو خپرونو له اړخه هم برخمنه ده چې د فحش او سېکس پر ځای علمي او ادبي ډالۍ لري چې دا ټول په حقیقت کې د اسلامي ټولنې او مؤمن توکم د رغاونې شعوري خوځښت دی.

دا آثر لکه کیسه او ناول خوږ لیکل شوی او د ژباړې حق هم ښه په کې ادا شوی دی. په دې ډول چې د ترکیب رواني، خوږلني او سادګي د مضمون او مانا انتقال ته هیڅ ستونزه نه پېښوي.

حمزه بابا (رح) وایي: ((د اسلام سپېڅلی دین د پښتنو له ملي ارزښتونو لکه مېلمه پالنه، زړورتیا، مظلوم ته پناه ورکول او د آزادۍ ساتنې سره کټ مټ یو ؤ، خو د دې ټولو صفاتو د تحقق لپاره د یوه محور او بنسټ اړتیا وه، د اسلام منلو د دې ننګیالي قام دا فطري اړتیا پوره کړه، نو ځکه یې تاریخ فاتح او د اسلام علمبردار ګڼي.))

د کتاب په پای کې ښاغلي نایل د ((وییپانګې)) په نوم یوه ښلونه لري او ښایي، دی هم د پښتو ژبې د سوچتابه لېونۍ مینې اغېزمن کړی وي، خو عرض دا دی چې د دغه افراط تر شا له پښتون قام سره د دوی د دین او کولتور پر سر ښکېلاکي تعصب ځپاند ښکاري. هغوی چې نن سبا نړۍ د ټکنالوژۍ پر ځواک یو کلی ګڼي، خو بیا هم پښتو ژبه له عربي او نورو ګاونډیو راپرېکوي. حال دا چې دغه چلند د پښتو ادب بنسټ اېښودونکیو مشرانو لکه استاد حبیبي، استاد رښتین، استاد رشاد او نورو په کلکه غندلی او مسترد کړی دی. زموږ دغو مخورو استادانو هم د

امکان تر حده پښتو سوچه او نږه ليکلې، خو د ړانده افراط پلوي يې هيڅکله کړې نه ده. استاد حبيبي وايي: ((له ځينو ژبو سره د پښتو د پېړيو- پېړيو ګاونډيتوب او متقابلو اغېزو يو ډول خپلوي رامنځته کړې او ځينو ويونو يې د تابعيت حق ګټلی دی چې بايد ترې وانخيستل شي.))

ژبه د ثقافت مور ده، زموږ اسلامپالي او هېوادپالي شازلمي بايد دغه بهيرونه په کلکه وڅاري او داسې نه شي چې هره ليکنه يې د ژبارې ارمنه او لوستونکی ترې ګټه وانخلي.

زه په پای کې د هوډمن ((نايل)) دغه زيار ته د لوی الله جل جلاله په دربار کې د ايجاب دعا کوم او د خوبولي اسلامي امت په غوږ کې يې د اسرافيلي شپېلۍ د زمزمو او پيغام پيلامه غواړم.

په همدې هيله

**ناکار**

پوهنتون مېنه

۱۳ لړم ۱۳۸۷ لمريز کال

# لا په لار کې ډېر د مینې....

که ننني ځوان ادبي بهیر ته پام وکړو، تر ډېره د هیلو سترګې وراوړي، زموږ ځوان فرهنګیان که د شعر او شاعرۍ په ډګر کې ځلېدلي یا یې د هنري نثر په میدان کې نوم وړی، خو تر څنګ یې د ژورنالېزم او ادب نغري هم د خپلو هڅو په تاو تاوده ساتلي دي.

زه چې د چا په باب د بحث چرګۍ تاودول غواړم، هغه بیا پر پورته یادو شویو ځانګړنو سربېره ځینې نورې ځانګړتیاوې هم لري ، لکه پر کمپیوټري چارو پوره پوهاوی او بیا د دې چارې ببلابېلو پروګرامونو ته لاسرسی چې د کتابونو او مجلو ډیزاین یې په سر کې راځي. ځوان او هڅاند لیکوال او ژورنالېست نجیب الله نایل مې چې کله هم کتلی، نو د کمپیوټر تر شا ناست وي او د کتاب، مجلې یا بل څه پر ډیزاین کولو بوخت وي.

مګر د دې ټولو هڅو تر څنګ یې چې یوه بله ستره هڅه تر سره کړه، هغه د آرما ګدون ((درېیمه نړۍ واله جګړه)) د مصري لیکوال استاد امین محمد جمال الدین دیني آثر دی چې ښاغلي نایل پښتو کړ، په دې آثر کې د قیامت د ورځې د راتلو په اړه د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم د احادیثو پر بنسټ ځینې نښې ښودل شوي دي.

د آرما ګدون: درېیمه نړیواله جګړه آثر په پښتو کولو سره نایل ثابته کړه چې خپلو دیني ارزښتونو ته ژمن دی او غواړي په دې برخه کې سترې وګالي او خولې تویې کړي. زه د ژباړل شوي آثر په اړه څه ویل نه غواړم؛ دا

دی ستاسي پر وړاندې دی او کولی شئ، پر موضوع د ښه پوهاوي لپاره تری ښه ګټه واخلئ.

زه همدومره ویل غواړم چې زموږ لیکوال او ژور نالپستان چې کله یو کتاب یا آثر چې موضوع یې هرڅه وي، له یوې نه بلې ژبې ته راژباړي، باید څو ټکو ته پام وکړي. تر هر څه وړاندې پر موضوع بشپړ حاکمیت ته اړتیا ده چې ژباړونکی په هغه مسلک یا رشته کې معلومات ولري، که په موضوع کې یې پوهه کمه وي، نو ښایي چې ژباړه یې ستونزې ولري. بله دا چې پر دواړو ژبو او د هغو پر ګرامري قواعدو پوهاوی ولري او د دې تر څنګ په ښه انداز مفهوم وژباړي چې تر ډېره دا چاره د ښاغلي نایل په ژباړه کې تر پام او نظر لاندې نیول شوې ده.

څرنګه چې ښاغلي نایل هڅه کړې او دا ارزښتناک آثر یې پښتو کړی. هڅه یې د ستایلو ده، خو:

**د کاروان خیرل منزل نه دی مجنونه!**

**لا په لار کې ډېر د مینې مقامات شته**

تمه لرو چې نایل به پر دې بسنه نه کوي او لا به خپلو هڅو ته دوام ورکوي چې دا ډول د نورو ارزښتناکو آثارو ژباړې ته مټې رابډ وهي.

**د نایل د لا بریالیتوب په هیله**

## ببرک میاخیل

**بي بي سي سیمه ییز دفتر، جلال اباد**

# د ژباړن سريزه

دا د لوی ذات الله جل جلاله له درباره د منني او شکر ځای دی چې لکه زما غوندې يو بېځواکه بنده ته يې د دې ځواک راوبانبه چې د ورځلوی (قيامت) د نښو نښانو په اړه د ليکل شوي کتاب (آرماګدون) د ژباړې يوه چاره ترسره کړم او د پايلاتونو (فتنو) په يوه داسې پړاو کې چې ټوله نړۍ يې په خپلو چټلو منګولو کې رانغاړلې ده، د دې جوګه يې کړم چې د انسانيت د ستر لارښود حضرت محمد صلی الله عليه وسلم هغه ويناوې او لارښوونې چې له دغو پايلاتونو څخه د ژغورنې لامل ګرځي، وړاندې کړم.

په دې وروستيو کې په هراړخيزه توګه د ژباړې ډګر ډېر تود ښکاري او هر ځوان چې پر کومې بهرنۍ يا پردۍ ژبې پوهېږي، په دې هڅه کې دی چې يو څه ترې راوژباړي؛ مګر دغه ځوانان دې ته نه ګوري چې دغه کتاب چې نوموړی يې راژباړي، د ده ټولنې ته څومره ګټور او څومره زيانمن دی، آيا د ده د ټولنې کوم درد و رنځ پرې درمل کېدای شي او که نه هسې د ليکوالۍ په ليکلړ کې د خپل نوم زياتونه ورته ښه برېښي. د بېلګې په توګه له بهرنيو ژبو څخه د ناولونو د ژباړې بهير ډېر ګرم جوتېږي، خو په دې ناولونو کې زموږ آر اسلامي او افغاني فرهنګ ته ډېرې ننګونې شته او په کې هغسې خبرې او تکي راوړل شوي دي چې له انسانيت سره نه ښايي.

پورتنيو ټکو ته په پاملرنې سره ما آرماګدون [1] ((درېيمه نړيواله جګړه)) کتاب د دې لپاره وژباړه چې له يوې خوا په کې زموږ ټولنه له خپل دين څخه خبرېږي او له بلې خوا په کې له راتلونکيو زيانونو او ستونزو څخه چې هيڅوک ترې بچ کېدای نه شي، هم خبرتيا ترلاسه کوي. نوموړی کتاب خورا ډېر پخوا ليکل شوی ؤ، خو د ژباړې لپاره زما ورته ډېر وروسته پام شو؛ ځکه چې نوموړی کتاب په بېلابېلو ژبو کې شتون درلوده، نو د دې اړتيا وه چې راوژباړل شي.

يوه ورځ په عبدالمجيد مومند کتابپلورځي کې له نورو ګڼو فرهنګي انډيوالانو سره په مجلس کې بوخت وم، ناڅاپي مې پر دې (آرماګدون

---

[1] - څرنګه چې هرمجدون يا اوښتی آرماګدون عبراني ويی دی، نو په عبراني کې نوموړی ويی په لاندې ډول داسې ليکل کېږي:

(מגידו הר)

په يوناني ژبه کې آرماګدون داسې Αρμαγεδων يا د Har-Magedon په وزن ليکل کېږي چې مانا يې ترې د مګيدو غر يا سيمه ده يا په اوسنۍ انګرېزي ژبه کې ورته Armageddon وايي چې دلته ترې هم يوه مانا د مګيدو سيمه او بله يې د انګرېزۍ ويونکي د وروستنۍ جګړې يا وروستنۍ نظامي مانورې وړاندې کوي چې د عيسويانو په نظر به دغه جګړه د خدای او شيطان تر منځ وي.

هو، که سړی فکر وکړي چې شيطان څوک دی، نو زما په اند دا اوسني نظامي خواکونه چې په ټوله نړۍ کې يې کشمکشونه او د هېوادونو تر منځ لانجې جوړې کړي دي، له دوی پرته بل څوک کېدلای نه شي.

همدارنګه آرماګدون ته نورې ماناوې هم شته چې د نړۍ پای، د وخت پای، د نباتي نړۍ پای او مدنيت، انسان او نبات ته خطر يې يادولی شو.

((دغه په لمنليک کې راغونډ معلومات مې له انټرنېټ تر لاسه کړي دي- ژباړن))

سترګې ولګېدې؛ د څو پاڼو تر اړولو رااړولو وروسته مې نصیرالله مومند ته وویل چې که دغه کتاب په پښتو ژبه کې نه وي، نو راژباړل يې اړين او ضروري دي، ځکه چې د کتاب د منځپانګې په پام کې نيولو سره له يوې خوا ديني ګټه لري او له بلې خوا په نړۍ کې د روان کشمکش او د شتو پايلاتونو د څېړنې لپاره زموږ د مذهب دريځ په کې خورا ښه ځلېدلی دی او سړی ښه پوهېږي چې د انسانيت ستر لارښود حضرت محمد صلی الله عليه وسلم يې په اړه څومره ښې لارښوونې او مشورې وړاندې کړي دي.

ګرانو لوستونکيو! ستاسو په لاسونو کې کتاب د مصر د الازهر پوهنتون د اسلامي دعوت او فرهنګ په څانګه کې د استاد امين محمد جمال الدين څېړنه ده چې د حضرت محمد صلی الله عليه وسلم له سپېځليو ويناوو او حديثونو څخه يې د ورځلوی د نښو نښانو په ښودلو او اثبات کې ګټه پورته کړې ده. نوموړی کتاب ما له پارسي ژبې څخه چې احمد محمدي له عربي راژباړلی ؤ، پښتو کړی دی، کېدای شي چې ځينې نيمګړتياوې او ستونزې ولري، هغه دا چې ژباړه بايد له لومړۍ ژبې څخه شوې وای، ځکه چې له ژباړې څخه په ژباړه کې به منځپانګې او مفهوم ته څومره زيان رسېدلی وي او دويمه دا چې يو الله جل جلاله پوره دی، کېدای شي له ما څخه هم په ژباړه کې زياتی يا کمی شوی وي، نو که تاسې کومه نيمګړتيا وينئ، د مهربانۍ له مخې يې له کمزوري بنده څخه دريغ نه کړئ.

په تلو- تلو کې د ننګرهار پوهنتون د ژبو او ادبياتو د پوهنځي له درانه استاد، د هېواد د پياوړي ليکوال او شاعر استاد فضل ولي ناګار د

زړه له تله مننه کوم چې پر دې ژباړې يې سريزه وليکله او په خپلو ارزښت لرونکې ليکنې سره يې د دې کتاب ارزښت لازيات او څو چند کړ.

همدارنګه د افغانستان په ختيزه سيمه کې د بي بي سي نړيوالې راډيو د پښتو څانګې له خبريال او د ننګرهار پوهنتون د ژبو او ادبياتو د پوهنځي له درانه ښاغلي ډاکټر مياخېل څخه هم نړۍ- نړۍ مننه کوم چې د خپل زما د لنډې پېژند ګلوۍ په بهانه يې زما په اړه کرښې توري کړې.

په پای کې د مومند خپرندويې ټولنې له درانه مشر نصيرالله مومند څخه ډېره مننه کوم چې د کتاب د چاپ او خپراوي لپاره يې سينه وډبوله، د دغه ډول ښو چارو د ترسره کولو لپاره دې الله جل جلاله تر ډېره ژوندی لري. يو ځل بيا هم په تلو- تلو کې که تاسې له نوموړي کتاب څخه څه زده کړي وي او يا مو ترې خوند اخيستی وي، نو له دعا مې هېر نه کړئ او که تېروتنې راڅخه شوي وي، نو ښښنه يې غواړم او که پرې تاسې پوه شوي ياست چې نيمګړتيا شته، نو مې پرې پوه کړئ.

درناوی

**نجيب الله نايل**

# د لیکوال سریزه

الحمد لله رب العالمین، القائل فی کتابه العظیم: ((فَهَلْ يَنظُرُونَ إِلَّا ٱلسَّاعَةَ أَن تَأْتِيَهُم بَغْتَةً ۖ فَقَدْ جَآءَ أَشْرَاطُهَا ۚ فَأَنَّىٰ لَهُمْ إِذَا جَآءَتْهُمْ ذِكْرَىٰهُمْ ﴿١٨﴾))

[محمد: ۱۸ آیت] [۱]

**والصلاة والسلام علی اشرف المرسلین و سید الاولین والاخرین و امام امتقین و حبینا محمد بن عبدالله صلی الله علیه وسلم و بارک علیه وعلی ذریته و ال بیته و من سلک سبیلهم واتبع هداهم الی یوم الدین.**

اما بعد: ای، اسلامي امته!.... ای، قرآني امته!.... ای، د محمد علیه الصلاة والسلام امته!.... دا یو سملاسي غږ دی... او دا تاسې ته وروستنی خبرې دي. دا یوه سملاسي او فوري چیغه ده، ځکه چې پېښې او حوادث هم په چټکتیا سره پېښېږي، جګړه ګرمه ده او پرېکړې د اسلامي امت پر پوپنا کېدو او نابودۍ هم راځرخي.

---

[۱] - دوی ورځلوی (قیامت) ته په تمه نه دي، مګر پر دوی به ناڅاپي راشي. هرګوره، هغه نښنه څرګندې شوې دي، نو د دوی لپاره د ورځلوی د راتګ په اړه د پند اخیستلو لپاره د قیامت نښې له کومه شي.

دا وروستنۍ خبرې دي، ځکه چې د نويو صليبي جګړو نغاره غږول شوې او توغونه (بيرغونه) يې په خوځېدو راغلي دي.... دښمنان په ډېرې چټکۍ سره رانږدې شوي دي.... او په کارونو او چارو کې يې لټي او سستي نه تر سترګو کېږي او د خپلو نخچو (نقشو) په پلي کولو کې هوډمن (مصمم) دي.

نه پوهېږم چې زما دا غږ به ستاسې تر غوږونو دورسېږي يا دا چې ورانوونکيو بمونو، وژونکيو توغنديو او د ټولوژنو وسلو غږونو کاڼه او خپه کړي دي، دا مهال موږ د درېيمې نړيوالې جګړې ((آرماګدون)) په ډګر کې ولاړ يو.

پر خدايږو؛ نه پوهېږم، د هغه کس چيغې او فريادونه څه شول چې زما پر کتاب ((د اسلامي امت مام [منګ- عمر] او د مهدي د راڅرګندېدو نږدېوالی)) به يې يرغل کاوه او زموږ له هغو خبرو يې تښه يا انکار کاوه چې د ((آرماګدون)) د رانږدېدو او د مهدي د راڅرګندېدو د نږدېوالي څرګندوونکې وې.

د هغه چيغې او فريادونه څه شول؟ آيا هوا ته ولاړې يا دا چې د ننګ و شرم اوښکو خپه کړې؛ په داسې حال کې چې د پېښنو څرګندېدل په چټکۍ سره وينو او د نړيوالې جګړې د نغارې غږ ورځ تر ورځې په چټکۍ سره پورته کېږي. خو اوس د شخړو او پړې وخت نه دی، نو پر ما او د اسلامي امت پر ټولو وګړيو لازمي ده چې شخړې او لانجې يوې خوا ته وغورځوو او يو شو او د يوسف عليه السلام په

وینا، موږ یو بل ته د وروړ غږ وکړو، لکه چې ویل یې: ((قَالَ لَا تَثْرِيبَ عَلَيْكُمُ ٱلْيَوْمَ ۖ يَغْفِرُ ٱللَّهُ لَكُمْ ۖ وَهُوَ أَرْحَمُ ٱلرَّٰحِمِينَ ﴿٩٢﴾))
[یوسف: ۹۲ آیت]

((نن ورځ پر تاسې هیڅ پړه نشته، الله جل جلاله تاسې وبښلې او هغه له غوره ښښونکیو څخه دی.))

څه ښه ده چې دغه شعر ووایم:

**ستبدی لک الایام ما کنت جاهلاً**

**و یاتیک بالاخبار من لم تزود**

تاسې ته هغه څه چې پرې نه پوهېږئ، د زماني تېرېدل روښانه کوي او تاسې ته دا خبر درکوي چې تاسې ورته هیڅ چمتووالی نه لرئ.

**والحمد لله اولاً و اخراً**

# امین محمد جمال الدین

# لنډه څېړنه

له الله جل جلاله څخه د مرستې په غوښتلو او د ښنې د هيلې په لرلو سره خبرې پيلوم. سملاسي چيغې او د ستونزو د اعلان خبرداري ته مې اسلامي امت په ((د اسلامي امت مام او د مهدي د راڅرګندېدو نږدېوالی)) کتاب کې پاملرونکی (ملتفت) کړ.

- بيا هم پر عالمانو، واکمنو او مشرانو؛
- ليکوالو، روڼاندو، د سياست د ډګر شخصيتونو او نظامي رهبرانو؛
- ځانګړيو او عامو وګړيو، سړيو او ښځو، مسلمانو کوچنيانو او غټانو؛

غږ کوم او خبرداری ورکوم چې مسلمانان دې له لټې، خبر او له خوبه دې راويښ شي او پر دې، دې پوه شي چې په ستونزمنو درو او د جګړو په دروازو کې ولاړ دي او له هغو لولنګرو او بېرحمو جګړو او بلاګانو سره مخامخېدونکي دي چې هيڅ څيز نه پرېږدي او نه يې خوشې کوونکې دي.

رسواکوونکې او تورې جګړې او اريانوونکي پايلاتونه (فتنې) چې پر يو او بل پسې راروان دي يا لکه د سمندر د شور جوړوونکيو څپو غوندې پر يو او بل پسې د خوځېدو په حال کې دي او هيڅوک ترې بې زيانه او په امن کې پاتې کېدای نه شي، خامخا زيان ورته رسوي؛ د شام د شاوخوا له زمکو به راچاپېرېږي، مصر به تر خپتې

لاندې راولي، هغه وخت به عراق ټوټه- ټوټه کېږي او جزيره به پايمالېږي.

هغه څه چې مې په کتاب ياد کړي وو، د هغوی پر پېښېدو مې باور درلوده؛ لکه څنګه چې خپل ځان مې پايلاټونو او جګړو ته په ډېر نږدې واټن کې ليده. همدارنګه مې يادونه.کړې وه چې يهوديان هم پر وروستنۍ جګړې چې د ((آرماګدون)) پر نامه يې يادوي، باور لري؛ لکه څنګه چې يې په انجيل کې يادونه شوې ده، خو زياتره ديني نسخې يې په خپله د دغې جګړې د ټاکلې نېټې په اړه خبر ورکوي. د بېلګې په توګه: يهوديان د دغې جګړې پېښېدو ته په ۱۹۹۸ زېږديز کال کې په تمه دي او نصارا پر دې ګروهمن دي چې دغه جګړه به د ۲۰۰۱ زېږديز کال په مني کې پېښېږي.

خبره په هغه ډول ده چې هغوی يې وايي، البته يوه ډله وايي چې په هغې کې د وړاندېوالي او وروسته والي شونتيا (امکان) شته او البته لږ توپير به په کې وي، مګر دغه ((لږ توپير)) د نړۍ د مام اوږدوالي ته په پام سره په دقيقو او ګړيو (ساعتونو) اندازه کېدلای نه شي، بلکې د هغې د اندازې واحد مياشتې او کلونه دي، ځکه چې نړۍ د څو زرو کلونو مام لرونکې ده.

د کتاب درلودونکي په دغې اندازې اخيستنې کې د ستورپېژندونکيو (نجوميانو) له کړنلارو او روشونو څخه ګټه پورته کړې نه ده، بلکې د خبرو بېخ و بنسټ يې هغه کتابونه دي چې پر

هغوی ايمان لري. د بېلګې په توګه د دانيال په يانه (سفر) کې راغلي دي چې: ((له سپېڅلي مې واورېدل چې خبرې يې کولې او يوه بل سپېڅلي له هغه څخه چې خبرې يې کولې، وپوښتل چې د تلپاتې بلهارۍ [قربانۍ] په اړه مفکوره او له منځه وړونکې ګناه چې سپېڅلتيا او لښکر به پايمالولو ته پرېږدي، کله به وي او هغه ما ته وويل: [د دوه زره او درې سوه يم تر ماښامه او سهاره به سپېڅلی لا سپېڅلی شي.)) [اصحاح: ۸-۱۳-۱۴]

په کاتوليکي چاپ کې هغه په دې ډول دی: ((د دوه زره او درې سوه يم تر ماښامه او سهاره به هغه ته بيا د سپېڅلتيا رښتې [حقوق] بېرته ورکړل شي.)) دغه ډول متنونه او بېلګې د هغه قوم په کتابونو کې موندل کېدای شي او د هغوی يوه ډله عالمان پر دې توانېدلي دي چې له هغو څخه د بريدونو او جګړو لپاره ټاکلې او دقيقې نېټې راوباسي، نو د هغوی متنونو او عبارتونو ته په پام سره يې له هغوی ټاکلي وختونه څرګند کړي دي. خو زما الواکونه (نظريات) د نړۍ د پای په اړه د هغوی له الواکونو سره همغږي لري او د دقيق مهالوېش له مخې له هغوی سره يو ډول نه دي. دغه خبره بايد ياده کړم چې نه پال کتونکی يم او نه ستورپېژندونکی، نه هم د هغوی د دليلونو راوړونکی او نه هم د هغوی پليونی (تابعدار) يم، بلکې زما لپاره زما خپل دليلونه او خپلې سرچينې شته، لکه څنګه چې هغوی دليلونه او کتابونه لري. البته په هغه ځای کې چې د

هغوی له خبرو سره زمونږ د کتاب خبرې همغږې او يو شان کېږي، مينه لرم، د پېغمبر حضرت محمد صلى الله عليه وسلم د اجازې پر بنسټ چې په دې هکله يې ويلې ده. يوه ځای کې وايي: ((**بلغوا عنى ولو اية و حدثوا عن بنى السرائيل ولا حرج.**)) [1]

((ورسوئ، زما له خوا څخه، که څه هم له تاسې سره يو آيت وي او له بني اسرائيلو يې روايت کړئ او هيڅ ستونزه پر تاسې نشته.))

هغوی هم په خپل وار زمونږ له خبرو څخه دليلونه تر لاسه کړي دي. د هغوی يو قس/ اميل بطرس نومي پوه (عالم) په خپلو ساتونکيو تسمو [2] کې- چې له ما سره شته- خپلو پليونو (پيروانو) ته داسې وايي: ((د مسلمانانو علماء هم د نړۍ د پای په هکله خبرې کوي او د آرماګدون بريدونه او جګړې يادوي.))

په همدې حال کې د ((د اسلامي امت مام او د مهدي د راڅرګندېدو نږدېوالی)) کتاب نوم يادوي او البته په وار- وار سره د دغه کتاب نوم د خپلو خبرو د همغږۍ د دليل په موخه زمونږ مسلمانانو له خبرې سره په ډېرې خوښۍ يادوي. هغه د دغه کتاب له خبرېدا څخه خپلو پليونو ته د وروستنۍ زمانې د جګړو په اړه خبرې کولې. ((خبر اوسئ.... ما د زړه له تله باور درلوده چې موږ د پايلاتونو، بريدونو او جګړو تر څنګ په خورا ډېر نږدې واټن کې ولاړ

---

[1] - صحيح البخاري (۱۲/ ۳۲) له عبد الله بن عمرو بن العاص رضى الله عنه څخه.

[2] - چې له پټنې او وربېنمو څخه جوړه وي.

يو، مګر اوس تر لږې مودې تېرېدو وروسته چې په لسګونو کتابونه مې لوستي دي او په لسګونو هيجان راپورته کوونکي اړوند کتابونه مې د لوستنې لپاره موندلي او تر دې وروسته د صليبي لښکر جنګي بېړيو له ماڼوګانو، ورانوونکيو وسلو، توغنديو او الوتکو سره په عمان سمندر، په هند سمندر او د عربي خليج په اوبو کې له ترهګرۍ سره د مبارزې تر سرليک لاندې لنګر اچولی دی.
کولای شم، سوګند ياد کړم او هيڅ يوې استثنا ته قايل نه شم چې د وروستنۍ زمانې بريدونه او جګړې او هغه څه چې د درېيمې نړيوالې جګړې او «آرماګدون» پيلوونکي دي، غاښونه يې تېره کړي دي، لستوڼي يې رابډوهلي دي او بريدکوونکي شوي دي او ښايي د «بحتري» وينا په خپل دغه شعر کې چې له «د کسری پر تخت يوه شېبه» بوللې څخه يې موږ رااخيستی، يادوم:

**والمنايا موائل و انوشر**

**و ان يزجی الصفوف تحت الدرفس**

«مرګ تر سترګو او نظر لاندې ولاړ دی او انوشېروان اوس هم لښکرې تر کاوياني توغ لاندې راټولوي.»
خبردار! .... مرګ خپل اوزار (وسايل) راټول او زيات کړي او خورا نږدې دی چې د ميليونونو انسانانو سترګې په خپلو غاټکيو کې ورښکته کړي. انوشېروان (بوش) لښکرې راټولوي او تر لويديز او صليبي توغ لاندې يې ځواکونه راټول کړي، تر دې چې ختيځ او

لويديځ د لښکرو د آس څغلونې ډګر ګرځي او وروسته د نړۍ ټولې لښکرې په يوې سختې او کورنۍ سوزوونکې- مخامخ جګړې کې ښکېلېږي. د آشا (اژدها) جګړه Dragon War چې رانږدې ده، د ترون کوونکيو جګړه، اتومي او ورانوونکې جګړه، غوښنه تويوونکې جګړه، درېيمه نړيواله جګړه او د آرماګدون Armageddon جګړه د پېښېدو په حال کې دي.

ای، اسلامي امته!.... ای، قرآني امته!..... ای د محمد عليه الصلاة والسلام امته! دغه تاسې ته وروستنی غږ او رسونه (پيغام) دی، هغه څه چې مې په وړاندېنې کتاب کې په لنډه توګه ويلې وو، اوس مې هغوی ته زياته څېړنه او توضيح ورکړه او هغه څه چې مې له ناڅيزې لوستنې (مطالعې) څخه د اريانوونکيو او هيجاني ننښو په اړه موندلي دي، ستاسو پر وړاندې مې کېښودل. لکه څنګه چې مې مطلب ښکاره کړی، نو سرچينه يې هم يادوم او د خپل آر ويونکي (سرچينې) ته يې تړاو (نسبت) ورکوم چې پازه (مسؤليت) يې د هغه د خپلې خبرې پر هغه وي. که چېرته ما پر هغه باور او اعتماد نه کولای، نو د هغه له ښکاره کولو څخه مې هم مخ اړاوه يانې صرف نظر کاوه. دغه مطلبونه له هغه څه سره ما مخکې ياد کړي وو، لنډ تړاو او همغږي لري. خو هغه سرچينې چې ما ترې ګټه اخيستې ده، د هغوی نومونه په لاندې ډول راوړم او بويه ټول دغه کتابونه پرته له چا څخه د غوښتنې له مخې ما ته رارسېدلي دي، يوه برخه يې عرب او

مصري ملګريو راډالی کړي دي او دغه امر يې راباندې وکړ چې که چېرې مې اريانوونکې ښنې بيامونډلې، نو عامو خلکو ته يې له څرګندولو څخه دريغ نه کړم او وکولی شم چې امت ته د تبليغ رښته مې ادا کړې وي او الله جل جلاله ښه ملګری او مرستندوی دی.

## د غوره کتابونو ليکلړ

۱- **الفتن** (**):

ابو عبدالله، نعيم بن حماد (ت: ۲۲۹ لېږديز- ۸۴۴ زېږديز)

المكتبة التجارية- مكة المكرمه.

۲- **القول المختصر فی علامات المنتظر** (*):

ابوالعباس احمد بن محمد بن حجر المكي الهيتمي (ت: ۹۷۴ ل- ۱۵۶۷ ز)

مكتبة القرآن مصر، مكتبة الساعي- السعودية.

۳- **الاشاعة لاشراط الساعة** (*):

الامام البرزنجي (ت: ۱۱۰۳ ل- ۱۶۹۲ ز)

مكتبة و مطبعة المشهد الحسيني.

۴- **المهدی المنتظر علی الابواب**:

محمد عيسى داود، طبعة اولى سنة ۱۹۹۷ ز- عربية الطباعة والنشر.

۵- **اسرار الساعة و هجوم الغرب**:

فهد سالم، طبعة اولى سنة ۱۹۹۸ ز- مکتبة مدبولى الصغير.

۶- **حمى سنة ۲۰۰۰**:

عبدالعزيز مصطفى کامل، لومړى چاپ، ۱۹۹۹ زېږديز کال.

۷- **يوم الغضب**:

سفر بن عبدالرحمان الحوالي، لومړى چاپ، کال ۱۴۲۱ ل- ۲۰۰۰ ز- سعودي.

۸- **البيان النبوى بدمار اسرائيل**:

فاروق احمد الدسوقي، لومړى چاپ، کال ۱۹۹۸ ز- الاسکندريه.

۹- **المسيح المنتظر و نهاية العالم**:

عبدالوهاب عبدالسلام طويله، لومړى چاپ، کال ۱۹۹۹ ز- دارالسلام للطباعه والنشر.

۱۰- **هل ينتهى العالم عام ۲۰۰۰**:

سليمان المدني، لومړى چاپ، کال ۱۹۹۶ ز، المنارة بيروت- دمشق

۱۱- **نهاية اسرائيل فى القران الکريم**:

محمد ابراهيم مصطفى، لومړى چاپ، کال ۱۹۹۷ ز.

۱۲- **تنبؤات نوستراداموس (کره کتنه او تحليل)**:

محمد سلامة جبر، لومړى چاپ، کال ۱۹۹۷ ز، مکتبة الصحوة- الکويت.

## يادونه

د يادونې وړ ده چې د (*) نښه چې د يو لړ کتابونو مخې ته اېښودل شوې ده، د اوسمهالو (معاصرو) ليکوالانو پورې اړوند نه دي. البته د پخوانيو ټولو کتابونو نومونه مې په نوموړي ليکلړ کې راوړي نه دي، د بېلګې په توګه: د الفتن د امام ابن کثير او د العرف الوردی فی اخبار المهدی کتاب د امام سيوطي، کشف عن مجاوزة هذه الامة الالف د سيوطي او نور. يواځې مې د هغو يو لړ کتابونو نومونه چې په وروستيو کې مې لوستي وو او په هغوی کې يو لړ اريانوونکې نښې چې د ننني ورځې له واقعيتونو سره يې همغږې درلوده، راټولې کړې.

(**) الفتن کتاب د امام ابي عبدالله نعيم بن حماد تر نورو کتابونو وروسته د ډېرې يادونې وړ دی، ځکه ليکوال په دې کتاب کې د جګړو او پايلاتونو څرګند ټکي له حديثونو څخه چې په نورو کتابونو کې لږ موندل کېږي، راټول کړي دي. ناويلي پاتې نه شي چې نعيم بن حماد له تبع تابعينو او د امام بخاري له شيوخو څخه په درېيم کتار کې ځای لري، ځکه امام بخاري د تبع تابعينو له ډېر غټ شخص څخه روايت کړی دی. (د فتح الباري سريزه: شيوخ البخاری، ۴۷۹ مخ)

## بحث ته تر ننوتو وړاندې د درېيو ټکو څرګندونه

۱- د نبوي حديثونو او ننبېرونو (آثارو) په اړه بايد يادونه وشي چې ټول حديثونه او ننبېرونه يوازې په مشهورو کتابونو لکه صحيح بخاري، صحيح مسلم، مسند احمد، سنن ترمذي، ابي داود، ابن ماجه او نورو نوميالیو کتابونو پورې تړلي دي، بلکې زيات کتابونه په حديثونو کې شته چې د لږ شهرت لرونکي دي، لکه: صحيح ابن عوانه، د طبراني ليکنې، سنن ابي سعيد، تاريخ ابن عساکر، مصنف ابن ابي شيبه، د ابن مقري ليکنې او پر دې سربېره لکه د ابي نعيم حلية الاولياء، د نعيم بن حماد کتاب الفتن او آن نور کتابونه هم شته چې د حديثونو د فنونو او علومو له ځانګوالو (متخصصينو) پرته ورسره نور اشنايي نه لري.

همدارنګه ناويلي پاتې نه شي چې نادرې او لږې پيدا کېدونکې نسخې شته چې د مشهورو او نامشهورو حديثونو رانغاړونکې دي. دغه نسخې چې تر اوسه د چاپ پر ګاڼه پسولل شوي نه دي، د نړۍ په مشهورو کتابتونونو (لکه په عراق کې عراقي مکتبه، په ترکيه کې د استانبول کتابتون، په طنجه کې د مکتبه تراث، په رباط کې د مکتبه درالکتب القديمه او د دمشق په اموي حامع کې د مکتبه بحرة الشام) کې ساتل کېږي، پر دغو لږو پيدا ـــدونکيو نسخو سربېره نورې په واتيکان د پاپ په کتابتون کې ـــ ـ ن لري.

۲- دغه مطلب هم د لومړني بحث په پاتې برخه کې شته، د جګړو او پايلاتونو په اړه ډېر نبوي حديثونه او ننبېرونه يواځې لږو او د ګوتو په شمېر اصحابو کرامو له حضرت محمد صلی الله عليه وسلم څخه ياد کړي دي، لکه حذيفه بن يمان، ابي هريره، ابن مسعود او عبدالله بن عمرو بن عاص رضی الله عنهم اجمعين. بنايي دا نکته بايد له ياده ونه ويستل شي چې حضرت محمد صلی الله عليه وسلم د هغو پېښو په اړه چې په راتلونکي کې تر ورځلوی (قيامت) پورې پېښېږي، خبر ورکړی دی.

امام بخاري او امام مسلم له عمر بن خطاب، حذيفه او نورو رضی الله عنهم څخه روايت کوي: ((**ان النبی صلی الله عليه وسلم صلی الفجر يوماً ثم صعد المنبر فخطبنا حتی حضرت الظهر، فنزل ثم صلی ثم صعد المنبر فخطبنا حتی حضر العصر، ثم نزل فصلی، ثم صعد المنبر فخطبنا حتی غربت الشمس، فاخبرنا بما کان و بما هو کائن، فاعلمنا احفظنا- و هذه رواية احمد و مسلم عن ابی زيد عمرو بن اخطب الانصاری.**))

((حضرت محمد صلی الله عليه وسلم له ورځو يوه ورځ د سهار تر لمانځه وروسته منبر ته وخوت او خبرې يې پيل کړې، تر دې چې د ماسپښين د لمانځه وخت راورسېد، له منبره راښکته شو او لمونځ يې وکړ. بيا پر منبر کېناست او د مازيګر تر لمانځه پورې يې خبرې وکړې، د لمانځه لپاره راښکته شو او تر لمانځه وروسته پر منبر

ښناست او د لمر تر ښوتو پورې يې خبرې وکړې. موږ ته يې د هغو په اړه چې تېرېږي او هغه څه چې به پېښ شي، خبر يې کړو. هر هغه چا چې له نورو څخه په دې اړه ځواکمن يا قوي يادښت او حافظه درلوده، معلومات لري- دغه روايت احمد او مسلم له ابو زيد عمرو بن اخطب الانصاري څخه روايت کړی دی.»

د پورتني روايت د صحت او منلو لپاره په يوه روايت کې راغلي او هغه امام بخاري له حذيفه څخه رانقل کړی دی: «**لقد خطبنا النبی صلی الله عليه وسلم خطبة ما ترک فيها شيئا الی قيام الساعه ال ذکره، علمه من علمه و جهله من جهله، ان کنت لاری الشيی قد نسيت فاعرفه کما يعرف الرجل اذا غاب عنه فراه فعرفه.**»

«حضرت محمد صلی الله عليه وسلم يوه خطبه وړاندې کوله چې په هغې کې يې موږ ته ټول هغه پايلاتونه چې تر ورځلوی پورې پېښېږي، خبر راکړ. ځينې پرې پوه شول او ياد يې کړل، مګر نورو هغه درک نه کړل او هېر يې کړل. رښتيا!، ما چې څه هېر کړي وو، د حضرت محمد صلی الله عليه وسلم د خبرو پر راياد ولو مې ياد ته راغلل او يو ځل بيا مې هغه ياد کړل، هماغسې چې څوک يو څيز هېر کړي، کله چې يې پرې سترګې ولګېږي، بيا يې پېژني.»

بيا هم پر دې ټکي ټينګار کوم چې حضرت محمد صلی الله عليه وسلم خپل صحابه کرام د هغو پايلاتونو او جګړو په اړه چې پېښ شول يا به پېښېږي، خبر کړي وو، مګر دوه، درې او يا ډېر

کسان پر دې توانېدلي دي چې دغه خبرې يادې کړي. په همدې اړه حذيفه بن يمان رضی الله عنه وايي: ((**والله ما ندری انسی اصحاب رسول الله صلی الله عليه وسلم ام تناسوا والله ما ترک رسول الله من قائد فتنه الی ان تنقضی الدنيا يبلغ من معه ثلاثماة فصاعداً الا قد سماه لنا رسول الله صلی الله عليه وسلم باسمه و اسم ابيه و اسم قبيلته.**)) [رواه ابو داود]

((پر الله جل جلاله سوګند يادوم، نه پوهېږم چې د حضرت محمد صلی الله عليه وسلم اصحابو هېر کړي وو يا يې خپل ځانونه په هېروونکيو کې وهلي وو. پر الله جل جلاله سوګند يادوم، حضرت محمد صلی الله عليه وسلم د پايلاتونو د لارښوونکيو [رهبرانو] او د دوی له خپلو وختونو څخه نيولې تر دې چې نړۍ به له منځه ځي، د هر يوه نوم، د پلار نوم او د قبيلې له نوم يادولو څخه هم تېر نه شو او د دغو خلکو شمېره تر درې سوو پورته وه.))

ښايي دغه هېرول د زياترو اصحابو کرامو رضی الله عنهم لپاره د هغه حديث په اړه چې د وروستنۍ زمانې د جګړو او پايلاتونو لپاره ځانګړې شوی، له پوهې او حکمته خالي نه ؤ، ځکه چې د دغو پايلاتونو خبرې په ټولو خلکو کې خپرې نه شي او له اصحابو څخه په کې زيات روايت کوونکي نه وي، ځکه چې دغه پېښې په راتلونکي پورې اړه لري او د راتلونکو پايلاتونو په اړه نغوته (اشاره) لري او په همدې کې د معلومو خلکو نومونه ياد شوي دي چې په کشمکشونو

او مخامختیاوو کې به ونډه لري. نو د الله جل جلاله خوښه دا ده چې د دغو پایلاتونو په اړه پوهه او پېژندنه لومړنیو او وروستنیو لړو او محدودو خلکو ته ورکړي. البته اړینه نه ده- هغه څوک چې پر دې پوهه ولري، حتماً دې پر نورو ځانګړې فضیلت او ځای ولري، بلکې دا د الله جل جلاله په خپلو بنده ګانو کې وېش دی او د روزۍ او رزق وېشونکی سپېڅلی دی.

حذیفه رضی الله عنه وایي: ((**کان الناس یسالون رسول الله صلی الله علیه وسلم عن الخیر و کنت اساله عن الشر مخافة ان یدرکنی....)) [رواه البخاری فی صحیحه]** .

((خلکو له حضرت محمد صلی الله علیه وسلم څخه د خیر په اړه پوښتنې کولې او ما له حضرت محمد صلی الله علیه وسلم څخه د شر په اړه وپوښتل، له دې وېرې څخه چې په راتلونکي کې پرې اخته نه شم.)) [بخاري په خپل صحیح کې دا حدیث روایت کړی دی.]

کوم شر چې حذیفه رضی الله عنه د هغه په اړه زړه راکښونتیا یا دلچسپي ښوده او له حضرت محمد صلی الله علیه وسلم څخه یې پوښتنه وکړه، له هغو جګړو او پایلاتونو څخه عبارت ده چې د دغه امت په منځ کې به پېښېږي، په همدې دلیل نوموړي تر نورو ډېرو اصحابو دغه ډول روایتونه یاد او حفظ کړي دي. ابو هریره رضی الله عنه هم د هغه غوندې ډېر روایتونه یاد کړي دي، ځکه رسول اکرم

صلی الله علیه وسلم د هغه په اړه دعا کړې وه چې هر هغه څه چې له حضرت محمد صلی الله علیه وسلم څخه واوري، هېر یې نه کړي. عبدالله بن عمرو بن عاص رضی الله عنه هم لکه د هغوی غونډې زیات روایتونه لري، ځکه چې هغه حدیثونه راټولول او لیکل به یې. نو ځکه له حضرت محمد صلی الله علیه وسلم څخه یې ډېر څه یاد کړي وو چې ځینو رضی الله عنهم یاد کړي نه وو.

مګر د حدیثونو او نښېرونو څرنګوالی او د پایلاتونو په هکله د حذیفه رضی الله عنه بېلګې چې هغه یادې کړې دي، څنګه دي؟

دغه ډول روایتونه له پایلاتونو، پېښېدلو او د هغوی له اټکلي نېټو څخه بحث کوي، لکه د خلکو له نوم او د پلار له نوم څخه یې پرده پورته کوي چې په دغو فتنو کې نخچ (نقش= رول) لري.

البته، هیڅکله د ټولو ګډون کوونکیو یا کوچنیو پایلاتونو نومونه، نه رامنځته کوي او د هغو خلکو نومونه اخلي- لکه څنګه چې د حذیفه په حدیث کې راغلي- چې د فتنو لاربنوونکي یا پازوال دي یا هغه خلک دي چې د درې سوه ګونو یا زیاتو پایلاتونو په لاربنوونه او رامنځته کولو کې اغېزناک نخچ لري یانې د غټو پیلاتونو ښنستنان چې د خلکو په ژوند کې نخچ ترسره کوي.

په همدې موخه موږ د زیاتو خلکو چې پایلاتونه رهبري کوي، لکه حجاج، د سفیاني شخص، د بني امیه یوه برخه خلک او د ډېرو پخوانیو او ننیو واکمنو او پاچاهانو په هکله خبرتیا لرو. د دغو

اشخاصو نومونه يا په څرګنده توګه ياد شوي او يا د هغوی په اړه نښې نښانې يې ويل شوي دي چې په راتلونکيو متنونو او عبارتونو کې به يې يادونه وکړو او ترې خبر به شئ. انشاءالله

۳- دغه برخه هم په پخوانيو دوو برخو پورې تړلې ده. مشهور يهودي ستورپېژندونکی «ميشل نوسترادا موس» چې په شپاړلسمې زېږديزې پېړۍ کې يې ژوند کاوه او په ۱۵۵۹ زېږديز کال کې مړ شوی، له ځانه يې څو رباعيات پرېښي دي چې په هغوی کې د راتلونکيو چارو په هکله خبر ورکوي او د هغه وړاندوينې د واقعيت له مخې تر اوسه سمې راوتې دي.

هغه په خپلو رباعياتو کې د لومړنۍ نړيوالې جګړې او دويمې نړيوالې جګړې په هکله وړاندوينې کړې دي او دغه دواړه جګړې هم پر هماغه ټاکليو نېټو پېښې شوې. همدارنګه يې د فرانسې د انقلاب په اړه خبرې کړې دي او د ستمګرو له راڅرګندېدو لکه هټلر او ناپليون د نومونو پر يادولو يې هم دريغ کړی نه دی. هغه دريمه نړيواله جګړه هم اټکل يا يې وړاندوينه کړې ده او دا يادونه يې کړې ده چې دغه ورانوونکې جګړه به د همدغې پېړۍ په لومړيو کې پېښه شي او دغه جګړه به اټومي او بيالوژيکي وي او د هغه په وينا: «د جګړې نښې نښانې ډېرې وېروونکې دي او په لويديځ کې چمتو کېږي او يو کال وروسته به زيانمنوونکی طاعون پر ځوانانو، زړو او د حيواناتو پر رمو واکمن [مسلط] شي.» مشهوره ده چې خبيث

اورنی مېکروب چې ((تاکو- انتراکس)) نومېږي او په امریکا کې موندل کېږي، انسان له پښو غورځوي او حیواناتو ته به هم سرایت کوي.

هغه له عربي جزیرې څخه د یوه ځوان (مهدي) د راڅرګندېدو خبر هم ورکړی دی. دغه وړاندویونکی (نوستراداموس) چې زیاتره امریکایان او اروپایان یې خبرې مني او آن تر دې هم آخوا، زیات خلک خپل سیاسي کړنلارې او جنګي نخچې د هغه د وینا مطابق جوړوي. په حقیقت کې هغه یو رنځپوه یا طبیب دی او هر هغه څه چې یې ویلي دي، د ((پال)) یا ((کهانت= عیب)) له مخې نه دي، بلکې د اسلامي نسخو له ستري زېرمې یې چې له خپلو یهودي نیکونو څخه ورته د پاتمرې (میراث) په توګه په لاس ورغلي، خبر او معلومات تر لاسه کړي دي، لکه څنګه چې دی په خپله د خپلو رباعیاتو په سریزه کې په دغه اړه منښته (اعتراف) کړې ده. البته د هغه نیکونو د اقصی د جومات د کتابتون پازه (مسؤلیت) پر غاړه درلوده او دغه اسلامي پاتمرې یې په خپل واک کې اخیستې ده. دغه کتابتون پر اسلامي کتابونو سربېره، د نصاراوو او یهودیانو د زیاتو نړه (ناتحریف شویو) روایتونو درلودونکی دی چې د هغه د وړاندوینو یوه ستره سرچینه ګڼل کېدای شي.

همدغه ځای دی چې کله خبرېږو، ((نوستراداموس)) د خپلو رباعیاتو نوم ((القرون)) ږدي، نو اریانېږو او بخاري حدیث مو

يادېږي چې له عمر بن خطاب څخه روايت کوي چې حضرت محمد صلی الله عليه وسلم خپلو ملګريو يا اصحابو ته، هغه څه چې تر ورځلوی پورې په هره پېړۍ کې پېښېږي، خبر ورکړی ؤ. بايد يادونه يې کړم، هغه څه چې نوسترادامو‌س يې وايي، په حقيقت کې زموږ مسلمانانو له لاسه وتلې او ترورل شوې پاتمرې ده چې زموږ له لاسه وتې او هغوی پرې ولکه کړې ده، موږه هېره کړې او هغوی ياده يا حفظ کړې ده.

ما ته په زړه پورې ده، وړاندې تر دې چې آر مطلب ته ننوځم، يوه وړه نغوته (اشاره) دوو مسئلو ته چې له دغو سترو پېښو سره اړه لري، وکړم. دغه دوې مسئلې په همدغو نږدې ورځو په امريکا کې پېښې شوي دي، لکه څنګه چې معلومات لرو، لومړی په نيويارک کې د نړيوال سوداګريز مرکز يو برج د اور خوراک شو، په داسې حال کې چې بل برج په تدريجي ډول د ړنګېدو په حال کې ؤ او ښکته لوېده، د امريکا د دفاع وزارت (پنټاګون) پر سر هم اور روښانه شو، دغه له هيبت او غروره ډکه کلا يې ملاماتې کړه او د امريکايي مشر خبرې يې ورخپه کړې. دغې پېښې اورنۍ جګړه چې په همدغو ورځو کې به ژبغړانده شي، راولاړه کړه.

## لومړنۍ چاره

لومړنی مطلب له هغه خوب څخه عبارت دی چې څو کاله وړاندې یوې ښځې لیدلی ؤ او استاد محمد سلامه جبر په «د نوسترا داموس وړاندوینو ته یوه کتنه او کره کتنه» کتاب کې یادونه کړې ده. دغه کتاب پر ۱۹۹۷ زېږدیز کال چاپ شوی دی، لیکوال د کتاب په ۱۹ مخ کې لیکي: «یوه درنه خور، څلور کاله وړاندې خوب ویني چې یو کتاب یې مخ ته پرانیستی پروت وي، ورنږدې کېږي او دغه متن یا عبارت ترې لولي: [هماغه خورا ستر او جیګ برج په روم کې شتون لري او کینه خوا یې اور اخلي، خو ښۍ خوا به یې ټوټه- ټوټه شي او ښکته به راولوېږي. نو کله چې دغه پېښه رامنځته شي، اروپا به د نېست او پوپنا کېدو پر لوري ولاړه شي او د ورځلوی ورځ به رانږدې شي.]»

پر دغه عبارت د ځان له خوا نور څه نه ورزیاتوم، ځکه چې مسئله په بشپړه توګه روښانه ده او په ټولیزه توګه له هغه څه سره چې موږ یې د نړۍ د پای په اړه پر بحث اخته یو، همغږي لري. تاسې هم پوهېږئ چې له نبوي ویناوو څخه پرته نور څه ښکلي خوبونه پاتې نه دي او دغه چارې په وروستنۍ زمانې کې ډېرې تر سترګو کېږي. د دغه خوب اریانوونکي او هیجاني حالت اړ کړم چې تاسې ته یې هم یادونه وکړم.

## دویمه چاره

له هغو مواردو څخه چې «نوستراداموس» په خپلو رباعیاتو کې راوړي دي او زه هم د هغه له اخځ (ماخذ- سرچینې) څخه معلومات لرم، دا دي: «د نوي پېړۍ پر لومړي کال او نهمه میاشت [۲۰۰۱ زېږدیز کال- سپتمبر] د مرګونو ستره پرښته له اسمانه راځي او اسمان په ۴۵ درجو کې روښانه کېږي.... او اور نوي او ستر ښار [نیویورک] ته نږدې کېږي. د [یورک] په ښار کې سخته پېښه یا نړېدنه رامنځته کېږي او پایلات د دوو ستونځونو [هسکو څوکو] د پوپنا کېدو لامل ګرځي.... د ستونځونو د راړنګېدو تر څنګ، ستر لارښود یا رهبر په جګړې کې د ګډون لپاره غږ کوي او دریمه نړیواله جګړه په داسې حال کې پیلېږي چې ستر ښار به په اور کې سوزېږي.»

هغه نکتې چې د پورتني متن یا عبارت په منځ- منځ کې اېښودل شوې دي، د لیکوال کار دی.

نو پام وکړئ چې د برجونو دوه ستونځونه څه ډول راړنګ شول او د نړۍ د ستر حکومت رئیس په داسې حال کې چې د «پنتاګون» سوزېدل یې په غږېدلیو سترګو په ژبغړاندو لمبو کې لیدل، له څه پرېشانۍ، سرګردانۍ او اریانتیا سره یې مخ کړ. دا هماغه څه دي چې زموږ په کتابونو کې شتو دلیلونو ته په پام سره د دریمې نړیوالې جګړې په اړه پرې باور لرو.

نو، آيا ستر ښار (يورک) به وسوزېږي؟ ((الله جل جلاله ډېر ښه پوهېږي.))

دا هغه څه دي چې د الله جل جلاله په غوښتنه پر دې وتوانېدم، وړاندې تر دې چې بحث يا وروستنيو خبرو ته ننوځم، اسلامي امت ته مې يادونه وکړه. هغه څه چې په راتلونکيو مخونو کې يې څرګندوم، هاند و هڅې پر دې کوم چې هغه زر تر زره وړاندې کړم، تر دې چې د کتاب سکالو (موضوع) هممهال له هغې اوتا (وضعيت) سره چې زموږ پر وړاندې ده، همغاړې او همغږې واوسي، څکه چې جګړې د کاله تر ورونو (دروازو) پورې رارسېدلي.

او:

په ايرو کې روښانه او ژوندۍ سکروټې وينم
او شونې ده چې دغه سکروټې د اور لرونکې هم وي
څکه، اور پر لرګيو ژبغړاند او ګرمېږي
او د جګړې پيل خبرې دي
زه د اريانتيا له مخې وايم، کاشکې زه پوهېدای چې
آيا امت ويښ دی يا خوبوړی دی،
که نه اوس هم په خوب کې ډوب دی؟

نو ورته ووايئ، جيګ شئ!! چې د جيګېدلو وخت رارسېدلی دی.

اوس لومړۍ برخې ته ننوځو.



# لومړی برخه

((د لومړيو جګړو او د هغو د لمبو او وړانګو په اړه))

- له کوېټ سره د عراق جګړه (پټ پايلات)
- د امريکايانو پر لور د کوېټ د واکمن تېښته او له روميانو مرسته تر لاسه کول (د جګړو پيل)
- له عراق سره د متحدو څواکونو جګړه او د دغه هېواد محاصره (د نړيوالې جګړې لومړنی پړاو يا دوره)

## د پالونکي او ښنونکي رب په مرسته د څپرکي څېړنه

د لومړنيو جګړو له پيل څخه موخه د جګړو پيل او آغاز نه دی، بلکې صحنې ته د راوتلو لپاره يې چمتووالی، د جګړې د تنابونو اوبدل او د هغو د لومړنيو لمبو او وړانګو ځرګندېدل دي. دغه برخه د جګړې د وړاندوينو په هکله ده او د جګړو د پيل ځرنګوالی به په دويمه برخه کې تر بحث لاندې راوړل شي. انشاءالله

هغه څه چې پر ۱۹۹۰ زېږديز کال پر کوېټ او د دغه هېواد د شتمنيو په ولکه راوستلو کې د ((صدام)) د بريد له امله رامنځته شول او ورپسې د کوېټ امير ((اخنس)) امريکايي ځواکونو (روم) ته پناه يوړه او هغوی د عراق د سرکوبولو لپاره نظامي ځواکونه راټول کړل، پايله يې دا شوه چې هغوی د عراقي ملت تر تسليمولو او د صدام د رژيم د له منځه وړلو د نخچې (نقشې) په اجرا کې له پاتېينې (ناکامېدلو) وروسته د دغه هېواد محاصرې ته ادامه ورکړه. دغه لومړنۍ جګړه ده چې د پټ پايلات په توګه تعبيرېږي او دغه د درېيمې نړيوالې جګړې ډګر ((آرماګدون)) دی.

هغه حديثونه او روايتونه چې پورتنۍ سکالوګانې (موضوعګانې) ثابتوي.

**له کوېټې سره د عراق جګړه (پټې پايلات):**

۱- امام ابو داود په خپل سند سره د سنن په کتاب کې له عبدالله بن عمر څخه نقل کوي، چې ويل يې: ((**کنا قعوداً عند رسول الله صلى الله عليه وسلم فذکر الفتن فاکثر فی ذکرها... الی ان قال: ثم فتنة السراء، دخنها من تحت قدمی رجل من اهل بيتی يزعم انه منی و ليس منی....**))[1]

((موږ د رسول اکرم صلى الله عليه وسلم پر وړاندې ناست وو، حضرت محمد صلى الله عليه وسلم د پايلاتونو په هکله وينا کوله او خبرې يې ډېرې اوږدې شوې... چې ويې ويل: [پايلات پټ دی، لوګی يا ګرد يې زموږ د کور د غړي د پښو له لاندې راپورته کېږي، هغه داسې انګېري چې له موږ سره تړاو لري، خو له موږ څخه نه دی.]))

له حديث څخه مې يواځې هغه برخه چې د پېښې په هکله يې شاهدي ورکوله، يادونه مې يې وکړه او هغه ((پټ پايلات)) دی. مګر هغه چې سملاسي ورپسې پېښېږي، ((تور پايلات)) ګڼل کېږي چې له هغو جګړو او جنګونو څخه عبارت دی چې حضرت محمد صلى الله عليه وسلم يې په اړه ويلي دي: ((په هماغو ورځو کې يا څو ورځې وروسته

---

[1]- صحيح: ابو داود (۴: ۷۷) او احمد (۲: ۱۳۳) او حاکم هغه سم او صحيح نيولی. کولای شئ، له فتنة السراء او الدهيما د خبرېدنې لپاره زما کتاب ((القول المبين فی الاشراط الصغری ليوم الدين)) (۱۰۸-۱۳۱) ته مراجعه وکړئ.

د دجال د راوتلو لپاره په تمه واوسئ يانې تر تور پايلات وروسته مسيحي دجال راوځي يا راښکاره کېږي.»

پټ پايلات چې د تور پايلات پيليزه (مقدمه) او د جګړو پيلوونکی دی، د حضرت محمد صلی الله عليه وسلم د کور د غړي پر لاس ټکان خوري او راپورته کېږي، ځکه هغه کس فاسد او فاجر دی. نو آيا هغه، هغه څوک دی چې پر کوېټ يې بريد ترسره کړ يا هغه څوک دی چې له روم سره يو ځای شو او له هغوی يې مرسته تر لاسه کړه؟[1]

دغه جګړه (د پايلات پيل) د پټو يا مخفي (کانونو او نفتي شتمنيو) له امله پيل شوه او هغه چا چې د مسلمانانو پر مخ د پايلات ور پرانيست، هغه څوک دی چې روميانو ته يې پر اسلامي هېوادونو د ورننوتلو اجازه ورکړه او په دغو ګډوډيو او بوختياوو کې د وروستني زمانې جګړې پيلېږي.

۲- استاد محمد عيسی په خپل کتاب (المهدی المنتظر علی الابواب) کې يو اريانوونکی روايت د ترکيې په کتابتون کې له شتو اسلامي- ليکي (خطي) نسخو څخه د (۳۶۶۴/ تراث المدينة المنوره) تر سرليک او تاليف لاندې له (کلده بن زيد بن برکه مدني) نومي يوه مدني عالم څخه د (اسمی المسالک لايام المهدی الملک

---

[1] - زما په اند هغه «د کوېټ امير» دی چې له روميانو يې مرسته تر لاسه کړه او د صدام نښې نښانې به په راتلونکيو روايتونو او څېړکيو کې بيان شي.

لکل الدنیا بامرالله المالک) تر سرلیک لاندې رانقل کړی دی، چې ورته متن یې لاندې راوړل شوی دی:

((و حرب فی بلد اصغر من عجب الذنب، یجمع اهل الدنیا لها، کانها اغني بلد اولم عیها الوالمون. و امیر فیها سلم رایته لزعیمة الشر الاتیه من الشواطی البعیدة الغربیة بدایة اخرالزمان فتجمع له صریخها من کل الدنیا و ترد له عرش الملک و یخرب عراق فی الملاحم بدایة اخرالزمان. و یحارب امیرالذنب الصغیر جیوش المهدی، و حان خراب البلد مرة اخری لان امیرها سرالفساد.... المهدی بقتله و یعود الذنب الی جسد.....))[1]

((او په کوچني ښار کې د لکۍ د وروستني هډوکي پر سر جګړه رامنځته کېږي، په دغې جګړې کې نړیوال د ګډون لپاره راټولېږي یانې ونډه اخلي، ته وا بډای مېلمه پالونکی ښار دی چې پر خواپخي (دسترخوان) یې نور خلک راټول شوي وي. او په هغه ښار کې یو واکمن دی چې خپل توغ شرجوړوونکي لاړښود ته چې د لویدیځ له لېرو کونجونو څخه په وروستنۍ زمانې کې راځي، سپارلی دی، هغه مهال فریاد رسوونکي یې له ګردې نړۍ څخه راټولېږي او شاهي تخت ورته بېرته راتر لاسه کوي او عراق د وروستنۍ زمانې په جګړو کې ورانېږي. او د لکۍ د وروستني هډوکي- کوچني ښار

[1] - نوموړی کتاب (۱۳۲ مخ) هغه موارد چې نکتې راویستونکي یا نکته چین دي، له آره (اصله) یې لیکونه خوړل شوي دي.

واکمن د مهدي له لښکرو سره جګړه کوي او یو ځل بیا وران ښار ته نږدې کېږي، ځکه چې واکمن یې د فساد جرړه ده....[1] مهدي د هغه په وژلو او دغه لکۍ په خپل آر (اصلي) بدن پسې راګرځي.))
دغه پورتنی متن سربېره پر اریانولو او هیجانوالي زیاتو څېړلو او تشریح کولو ته اړتیا نه لري، ځکه چې ټولو خلکو ولیدل او پوهېږي چې څنګه په کوچني ښار کې جګړه په هماغه برم و پرتم سره یوه ورځ تر غرمې وروسته راپېښه شوه. د ((کوېټ)) لپاره د لکۍ د وروستني هڅوکي نوم اېښودنه له نورو عربي هېوادونو لکه سعودي، مصر، عراق او... سره د پرتلنې له مخې د هغه د کوچنیوالي له امله ده.
ټول خلک پوهېږي چې نړیوال (د عراق پر ضد متحد ځواکونه) د همدغه کوچني هېواد لپاره راټول شول (۳۷ حکومتونه). د دغه ښار واکمن (اخنس) د فساد د لاربښود (امریکا) چې د لویدیځ له لېرو کونجونو څخه راځي، امر منونکی شو او خپل توغ یې هغه ته وسپاره.
هغوی د هغه تخت د عراق تر ورانولو وروسته او د وروستنۍ زمانې د جګړو په پیل کې بېرته ورته سپاري، البته تر هغه مهاله چې دغه د ټیټ فطرت لرونکي ځواکونه د یتیمانو پر خواپخې د دعوت له خوړلو څخه وزګار او فارغ شي.

---

[1] - نکته راویستونکې برخه په آر کې لیک خوړل شوې ده

بله خبره دا چې آيا هغه سفياني کس (صدام) له هغو کسانو سره چې ورسره جنګېږي، ښکېلېږي او يو ځل بيا کوښ خپله موخه ګرځوي او د تېر په څېر يې ورانوي او همدارنګه اور او اسماني آفتونه به پر سرکښو، فاسد او د الله جل جلاله له نعمتونو څخه پر ناشکره قوم راوري؟ د همدغه قوم واکمن د فساد رمز دی، تر هغه ځايه چې مهدي به د وژنې امر ورکړي او الله جل جلاله د حال له حقيقته خبر دی. دا هغه څه دي چې له نوموړي متن يا عبارت څخه تر لاسه شول.
په هر حال، له کوښ سره د عراق جګړه يو پښ پايلات ؤ چې د تور يا لويديز پايلات لپاره پيليزه ده چې د اسلامي هېوادونو پر لور د روم (لويديځ) لښکرکشي د نړيوالې جګړې ((آرماګدون)) لپاره د چمتووالي نوم او ترې وروسته د لويې جګړې پيل دی.
۳- له هماغې سرچينې څخه په يوه بله ليکنه کې چې په درېيمه هجري پېړۍ او په يوه شامي تابعي پورې تړاو لري، دغه ډول راوړل شوي دي: ((... **و فی عراق الشام رجل متجبر... و ... سفيانی، فی احدی عينيه کسل قليل. و اسمه من الصدام و هو صدام لمن عارضه، الدنيا جمعت له فی [کوت] صغير دخلها و هو مدهون و لا خير فی السفيانی الا بالاسلام و هو خير و شر والويل لخائن المهدی الامين.**)) [1]

---

[1]- هماغه سرچينه، ۲۱۲ مخ.

«... او د شام په عراق کې یو ظالم... او... سفیاني شخص دی، په یوه سترګه کې یې لږه سستي شتون لري او نوم یې له تکر کوونکي څخه اخیستل شوی او هغه تکر کوونکی [صدام] دی چې هر څوک له هغه سره ښکېل شي. نړۍ ورته په کوچني [کوت] کې، چې نوموړی پکې ننوتی وي، راټولېږي او هغه غوښن دی او د سفیاني لپاره پرته له تسلیمېدو څخه هیڅ خیر نشته، په هغه کې خیر او شر دواړه شته او له مهدي امین سره خیانت کوونکي دې هلاک او تباه شي.»
په دغه متن کې د عراق د ظالم واکمن نوم او ځانګړنې چې سفیاني دی، په څرګنده توګه بیان شوي دي او کېدای شي په هغه پورې اړوندې نورې ځانګړنې په یوې ځانګړې برخې کې وویل شي. په هغه برخه کې څرګند شوي دي چې هغه به دوکه وخوري چې د کویټ پر خاوره به برید وکړي او رومیان به ورته دوکه ورکړي چې نوموړی به د خپلو برنامو د پرمخبېولو لپاره د یوې وسیلې په توګه وکاروي. صدام به لومړنی سفیاني وي او تر هغه وروسته به یو بل سفیاني رامنځته شي چې بنایي د هغه له کورنۍ څخه واوسي.
سفیاني د خیر و شر لرونکی دی، مګر هغه وخت چې مهدي راڅرګندېږي، ټولې ښېګنې د هغه له تنه تېښته کوي او د شر پر یوې پڅۍ (مجسمې) بدلېږي. له مهدي سره جګړه کوي او همدغه چاره لامل کېږي چې مهدي یې د وژنې امر ورکوي او خلک یې له شره ژغورل کېږي.

## د امريکايانو پر لور د کوېټ د واکمن تېښتته او له روم څخه مرسته تر لاسه کول (د جګړې پيل)

نعيم بن حماد په خپل کتاب الفتن کې په خپل سند سره له ابو هريره رضی الله عنه څخه روايت کوي چې رسول الله صلی الله عيله وسلم وويل: ((**سيکون من بنی امية رحل اخنس بمصر (ای ببلد) يلی سلطانا يغلب علی سلطانه او ينتزع منه فيفر الی الروم فياتی بالروم الی اهل الاسلام فذلک اول الملاحم.**)) [1]

((د اميه له کورنۍ څخه به د اخنس په نامه يو شخص په يوه ښار کې وي، د هغه تر څنګه به يو واکمن وي او هغه واکمن به د هغه پر هېواد واکمن شي يا هېواد به يې له لاسه وباسي. هغه به په سملاسي ډول روميانو ته پناه يوسي او روميان به د اسلامي هېوادونو پر لوري کشوي. دا د وروستنۍ زمانې د جګړو پيل دی.))

همدارنګه په خپل سند سره له عبدالله بن عمرو بن عاص څخه روايت کوي چې ويل يې: ((**اذا رايت او سمعت برجل من ابناء الجبابرة بمصر له سلطان يغلب علی سلطانه ثم يفر الی الروم فذالک اول الملاحم ياتی الروم الی اهل الاسلام.**))

---

[1] - نعيم بن حماد، الفتن، ۲۹۱ او ۲۹۲ مخونه: لومړنی روايت له ابو ذر څخه او دويم روايت له عبدالله بن عمرو څخه او روباني هم په خپل مسند کې له ابو ذر څخه روايت کړی دی.

((هر کله چې دې ولیدل یا واورېدل چې د جبارانو له زامنو څخه یو تن واکمن یې د بل واکمن په وسیله مغلوبېږي، وروسته روم ته تېښته کوي چې همدغه وخت د جګړو پیل دی چې رومیان د مسلمانانو د هېوادونو پر لوري راخوځېږي.))
اوس فکر وکړئ، د کوېټ امیر کله چې خپل هېواد یې د څو میاشتو لپاره له لاسه ورکړ او هغه یې چې د صدام د لښکرو په ولکه کې ولید، څه یې وکړل. پرته له دې چې ورک شو او له وېرې یې رومیانو ته پناه یوړه او د هغوی د ځواکونو په مرسته یې پناه واخیسته چې زړه پرې وسوزوي او له لاسه وتلی هېواد ورته بېرته راوګرځوي. له همدې امله د پټ پایلات لوګي یا ګردونه راپورته کېږي. که چېرته هغه له مسلمانانو مرسته غوښتې وای چې هېواد ورته راوګرځوي، ورته به غوره وای: مګر ((اخنس)) اموي پوه نه شو چې د دغه کار له امله یې د لویدیځ پر مخ ور پرانیست او د لویدیځ د بې پروا پایلات لپاره یې زمینه چمتو کړه. همدغه زمینه د جګړو لومړنۍ شېبې او د هغوی د وړانګو د پورته کېدلو پیلامه ده. ای، اسلامي امته! الله جل جلاله دې ستاسې مرستندوی او ملاتړی واوسي.

**د ګډو (متحدو) ځواکونو په وسیله د عراق سرکوبول او وروسته د دغه هېواد محاصره (نړیواله جګړه په لومړنۍ صحنه کې)**

دریيمه نړیواله جګړه ((آرماګدون)) دوې برخې او کېدای شي څو برخې ولري: د ګډو ځواکونو په وسیله د عراق نیول کېدل چې اووه دېرشو ۳۷ هېوادونو پر عراق برید ترسره کړ!!!

مګر تر هغې وروسته؟؟

بیا هم عراق ماتې ونه خوړه، هماغه پخوانی نظام پکې پاتې شو او سربېره پر هغو وینو تویولو سره د عراقي ملت ملګرتیا له خپل هېوادمشر سره زیاته شوه. ګډ ځواکونه د عراقي ملت له پښو غورځولو څخه او د صدام د حکومت په له منځه وړلو کې بریالي نه شول او د عراق لپاره دغه ستره بریا (کامیابي) د دریيمې نړیوالې جګړې له لومړنیو جګړو څخه شمېرل کېږي، اوسمهال دغه جګړه پر اقتصادي ولکې او ورځنیو تالانونو راڅرخي او ادامه لري، مګر تر اوسه پورې د ګډو ځواکونو کومه ځانګړې بریا په برخه شوې نه ده.

دغه خبره باید له یاده ونه ویستل شي چې دغه ولکه او محاصره هیڅکله پای نه مومي، تر دې چې د نړیوالې جګړې بله یا دویمه جګړه پیل شي او عراق به په دغه اور سوزېدنې کې مهم رول لوبوي یانې سوزېږي به.

## په دغه هکله راغلي يا راوړل شوي روايتونه

۱- نعيم بن حماد د ((الفتن)) په ۲۹۶ مخ کې له کعب څخه روايت کوي چې هغه د روميانو په هکله داسې ويل: ((**فتصالحونهم ثم تغزون انتم و هم الکوفة فتعرکونها عرک الاديم.**))

((تاسې به له هغوی سره سوله کوئ، بيا تاسې له هغوی سره په کوفه کې جګړه کوئ او هغوی د پنبې د دانې د پوستکي غوندې پايمالوئ- ياني له منځه يې وړئ.))

په يوه بل روايت کې له نعيم څخه په ۲۶۸ مخ کې له حکيم بن عمير څخه داسې رانقل کوي: ((**ثم يبعث الروم يسالونکم الصلح [التحالف]، و فی ذالک الصلح تعرک الکوفة عرک الاديم و ذالک لترکهم ان يمدوا المسلمين، فالله اعلم اکان مع خذلانهم حدث اخر يستحل غزوهم و تستمدون الروم عليهم.**))

((هغه مهال به روميان د سولې رسونه [پيغام] لېږي، په همدغه سوله کې کوفه لکه د پنبې د دانې يا ځرمنې غوندې پايمالېږي او همدا له مسلمانانو سره د مرستې د نه کولو لامل دی. مګر الله جل جلاله ښه پوهېږي چې له مسلمانانو سره پر مرستې سربېره يوه بله پېښه هم پېښېږي چې د هغوی د وينې تويول روا [حلال] ګرځول کېږي او له روميانو څخه په مرستې اخيستلو سره دا ځيز لامل ګرځېږي.))

۲- امام مسلم په خپل سند سره له جابر بن عبدالله څخه روايت کوي چې ويل يې: ((**يوشک اهل العراق لا يجبی اليهم قفيز و لا درهم،**

**قلنا: من اين ذالک ؟ قال: من قبل العجم، يمنعون ذالک، ثم قال: يوشک اهل الشام ان لا يجبی اليهم دينا و لا مدی. قلنا من اين ذالک ؟ قال: من قبل الروم. ثم سکت هنية، ثم قال: قال رسول الله صلی الله عليه وسلم يکون فی اخر امتی خليفة يحثی المال حثياً لا يعده عداً.))** [1]

((هغه وخت نږدې دی چې د عراق خلکو ته يو قفيز [خوراک] او يو درهم رانشي. ومو ويل: له کومه ځايه؟ ويې ويل: د عجم (د غير عربو) له لوري، هغوی د دغه ټاکلي اندازې خوراک واک به په لاس کې اخلي. وروسته يې وويل: هغه وخت نږدې دی چې د شام خلکو ته يو دينار او يو مد [طعام] رانشي. ومو ويل: له کومه ځايه؟ ويې ويل: د روميانو له لوري. يوه شېبه يې چوپتيا غوره کړه، بيا يې وويل: رسول اکرم صلی الله عيله وسلم ويل: زما د امت په وروستنيو کې به يو خليفه وي چې مالونه به لاس په لاس وېشي او شمېرل به يې نه کوي [د ډېر سخاوت او بخشش به کوي.]))

---

[1] - صحيح مسلم، د الفتن کتاب، له جابر څخه، احمد په خپل مسند کې روايت راوړی دی، قفيز: د عراق خلک يې د غلې دانې خوراک ته وايي او مدی: د شام خلک خوراک او آتام (طعام) ته وايي. او په پای کې روايت کوونکی وايي: ((ما له ابی نصره او ابی علاء څخه وپوښتل: ستاسې په اند هغه (خليفه) عمر بن عبدالعزيز دی؟ ويې ويل: نه، مهدي دی.

د عـراق تـر ولکـې او محاصرې وروسـته د شـام زمکـې (فلسطين) محاصره کېږي او د دغې ولکې لمنه تر سوريې پورې اوږدوالی پيدا کوي. وروسته د مهدي د راڅرګندېدلو وخت رارسېږي، هغه خليفه چې مالونه به پرته له شمېرلو څخه پر خلکو وېشي.
مګر دا چې نړيواله جګړه څو برخې لري، لـه نعيم بـن حماد څخـه د الفتن د کتاب په ۱۷۸ مخ کې روايت دی چې په خپل سند سره يې له خالد بن معدان څخه نقل کوي: ((**يهزم السفيانى الجماعة مرتين ثم يهلك.**)) ((سفياني ګډو ځواکونو تـه بيـا مـاتې ورکـوي، وروسـته پـه خپله پنا يا نابود ېږي.))
د امريکا د نويـو نظامي تړون کوونکيـو راټولېدنـه د هغـې ننګونې (چېلنج) پر وړاندې چې د دغـه هېـواد پـه واشـنګټن او نيويـارک کـې رامنځته شوه، دغه مطلب بنه ترا څرګندېږي چې پـر افغـانسـتان تـر بريـد وروسـتـه عـراق تـه نوبـت رسـېږي او د ترهګـرو د سـرکوبولو پـه بهانه دغه هېواد تر بريد لاندې راولي.



# دويمه برخه

((د درېيمې نړيوالې جګړې او د جنګونه پيل))

- د تورو توغونو راڅرګندېدل (په افغانستان کې طالبان)
- د تورو توغونو د څښتنانو د سرکوبولو لپاره د لويديځ لښکرکشي (د ترهګرۍ پر وړاندې مبارزه)
- د ((ګوډ)) په بولنه (قومندې) د سويس له کانال څخه د لويديزو ځواکونو تېرېدل (صليبي جګړې)

**ای، اسلامي امته!**

لویدیزو لښکرو د تازه صلیبي برید لپاره لښکرکشي کړې ده او د هغوی د ټولو مشر او امر کوونکي «بوش» په ځرګنده توګه د دغې جګړې یادونه کړې ده، مګر د دغو خبرو پر وړاندې د مسلمانانو د سختې ننګونې له امله اړ شو چې هغه بېرته واخلي، خو څواکونه یې راستانه نه کړل. پر همدې بنسټ هغه څه چې زړه پټ ساتلي وي، تل په کې نه پاتې کېږي او یو وخت راڅرګندېږي. «قَدۡ بَدَتِ ٱلۡبَغۡضَآءُ مِنۡ أَفۡوَٰهِهِمۡ وَمَا تُخۡفِي صُدُورُهُمۡ ﴿١١٨﴾»[1] [آل عمران: ۱۱۸ آیت]

صلیبي لښکرو په لنډه موده کې له خپلو مخکښو برنامو او ټاکل شویو نخچو سره د ختیځ پر لور رارهي شول چې افغانستان او د دوی په ګومان د ترهګرو اډې له منځه یوسي. په هر حال، دغه پوچ او بې بنسټه دلیل پر خپلو شومو موخو د برغېلي (سرپوښ) کېښودل دي او هر څوک پوهېږي چې هغوی غواړي خپل واک پر ټوله نړۍ وچلوي او هر غیر مسیحي که هغه کمونېست دی، که هندو یا بودایي او یا مسلمان دی، تر خپلې ولکې لاندې یې راولي. د دوی په ګروهه (عقیده) دغه ډلې شر جوړوونکي (اشرار) دي او باید ټول له پښو وغورځول شي، ځکه دې د دوی له تنو (وجودونو) سپېڅلې

[1] - د دښمن له خولو څخه یې هره آیینه (خبره) راڅرګنده شوه او هغه څه چې په زړه کې پټ ساتي، ډېر سخت دي.

شي چې د ((رب)) د راکېوتو (نزول) زمينه چمتو شي. ځکه نو هغوی پر دې ګروهمن دي چې ((رب)) له اسمانونو څخه زمکې ته راښکته کېږي او پر زمکې حکومت کوي، هغه وخت به په زرګونو وګړي په خوښۍ او نېکبختۍ کې ژوند کوي او کنه د دغو ټولو ځواکونو راټولېدنه چې د نظامي کارپوهانو په اند د زمکې د نيمې کرې د له منځه وړلو ځواک لري، څه اړتيا لري. هغوی پر دې پوهېږي چې د مسيح د راکېوتو شېبې رانږدې شوي دي، پر همدې دليل يې ځواکونه د ((ګوډ کندي)) تر ګډ يا ټول تال ماموريت لاندې راخوځېدلي چې شر جوړوونکي له منځه يوسي. د چمتووالي په لومړي پړاو (مرحله) کې له مسلمانانو سره د کمونېستانو پر وړاندې يو ځای کېږي، مګر په پای ((لويې جګړې)) کې به له مسلمانانو سره خيانت کوي.

صليبي ځواکونه د سويس له کانال څخه راتېر شوي دي او په ټوله سيمه کې يې د تورو توغونو د څښتنانو ((د طالبانو په رهبرۍ د افغانانو)) د سرکوبولو لپاره سنګر نيولی دی. هغوی به هيڅکله دغه سيمه پرېنږدي، تر دې چې ختيځ او لويديځ تر خپلې شا يوه لويه پېښه، ستره لښکرکشي او خطرناکه جګړه پرېښې نه وي، ځکه کمونېستي ختيځ (چين او روسيه)، د ايران شيعه ګان او د عراق ګډ (سنيان او شيعه ګان) به هيڅکله په سيمه کې د لويديزو نظامي ځواکونو پر شتون خوښ نه وي. نظامي ځواکونه به ټوله سيمه په

خپله ولکه کې راوړي او همدارنګه به بې پتي او بدمستي (بدخلقي) به کوي، يو به سرکوبوي او بل به تر تهديد لاندې راولي. همدغه ځای دی چې شخړې رامنځته کېږي او هغه جګړه چې صليبيانو ورته مودې- مودې وړاندې برنامې جوړې کړي دي، پيلېږي.
د پردې تر شا ((يهوديان)) چې له ((نصاراوو)) سره په ګډه ژغورنځای کې د ګروهې يووالی (پرته د هغه د تفسير او تشريح له اختلاف سره- سره) چې لري يې، يولاسي دي او دغه جګړه سپېڅلې جګړه ګڼي.
موږ د جګړې د پېښېدو شېبې ډېرې نږدې او د هغې د وره پر لوري ګورو او د هغې پر باوري او تاکلي وخت يوائې او يوائې رب العالمين پوهېږي.
اوس هغه حديثونه او روايتونه چې د تورو توغونو د لرونکيو او د هغوی د ځانګړنو او د لويديزو توغونو او د ګوډ بولندوی (قومندان) په اړه راوړل شوي دي، راوړو.

## د تورو توغونو د ښتنانو راڅرګندېدل (په افغانستان کې طالبان)

په افغانستان کې له مشکي پټکيو، سپينو کاليو او پام اړوونکيو ځېرو سره د طالبانو د غورځنګ رامنځته کېدل، د جنګ او جګړو د ولېدا له غتو نښو څخه شمېرل کېږي. په راتلونکيو څو کرښو کې بعد راوړل شوي روايتونه او نښې د دغې ډلې په ځانګړنو ښودلو

کې راوړو. البته دغه ډله سربېره د تورو توغونو پر درلودلو سره د ايران شيعه ګان دي!؟، ځکه هغوی د بني عباس په وخت کې د تاريخ په پاڼو کې راڅرګند شول، مګر دوی «د تورو توغونو څښتنان» به له اهل سنتو څخه وي چې د مهدي د راڅرګندېدلو پر مهال به د هغه لومړني سلاکاران «مشاورين» وي.

د طالبانو غورځنګ پر ۱۹۹۶ زېږديز کال رامنځته شو او له نښو او روايتونو څرګندېږي چې د هغوی او د مهدي د راڅرګندېدلو تر منځ به د اوياوو او څو مياشتو «په اټکلي توګه شپږ کلونه» مهالنۍ واټن وي. خو د هغوی په اړه راوړل شوې نښې:

۱- نعيم بن حماد په خپل سند سره له محمد بن حنيفه څخه روايت کوي: ((**تخرج راية سوداء لبنى العباس ثم تخرج من خراسان اخرى سوداء، قلانسهم سود و ثيابهم بيض... الى ان قال: يكون بين خروجهم و بين ان يسلم الامر للمهدي اثنان و سبعون شهراً.**)) [1]

((له بني عباس څخه يوه ډله خلک له تور توغ سره راڅرګندېږي، وروسته له خراسان څخه تور توغ راپورته کېږي، خلک به يې سپينې خولۍ او جامې لري.... تر دې چې ويې ويل: د دغې ډلې د راڅرګندېدلو او مهدي ته د بولنې د ورسپارلو تر منځ به اويا او څو مياشتې تېرې شي.))

---

[1] - نعيم بن حماد، د الفتن کتاب، ۱۸۸ مخ.

له دغو روایتونو څخه څرګندېږي چې وروستني تور توغونه په خراسان (افغانستان) کې دي، پرته له هغو توغونو څخه چې د ایران شیعه ګان بني عباس یې لري. د طالبانو (د تورو پټکیو او او سپینو کالیو له درلودلو سره- سره) تر راڅرګندېدلو وروسته په دغه روایت کې هیڅ شک نه پاتې کېږي چې هغه تور توغونه چې له مهدي سره به مرسته کوي او د شیعه ګانو له تورو توغونو څخه پرته نور ګڼل کېږي. مګر د برزنجي په روایت سره د الاشاعه لاشراط الساعه د کتاب په ۱۱۴ مخ کې، له مهدي سره د سفیاني تر جګړې وروسته دغه ډله له هغه سره په جګړه کې ښکېلېږي.

۲- همدارنګه نعیم په خپل سند سره د رسول اکرم صلی الله علیه وسلم له مېرمنې حفصې رضی الله عنها څخه روایت کوي چې حضرت محمد صلی الله علیه وسلم وویل: ((**اذا سمعتم بناس یاتون من قبل المشرق و اولودهاء یعجب الناس من زیهم فقد اظللتکم الساعة.**))[1]

((هر کله مو چې واورېدل، د خلکو یوه ډله د ختیځ له لوري راځي چې هوښیار او ښه بصیرت ولري او خلک یې د څېرو له لیدلو څخه اریانېږي، هغه وخت به پر تاسو د ورځلوی سیوری خپور شي.))

دغه روایت په بشپړه توګه د هغوی د ځانګړنو رانغاړونکی دی، ځکه د طالبانو کالیو هم ټول خلک په اریانتیا کې اچولي وو او

[1]- نعیم بن حماد، د الفتن کتاب، ۱۲۱ مخ.

هغوی له ختیځ لوري څخه راپورته شول او د هغوی راڅرګندېدل د جګړو له پیل او د ورځلوی له نړدېوالي سره همغاړي او مترادف دي.
۳- نعیم بن حماد په خپل سند سره له زهري څخه روایت کوي چې ویل یې: ((**تقبل الرایات السود من المشرق یقودهم رجال کالبخت المجلله اصحاب شعور انسابهم القری و اسمائهم الکنی**...)) [1]

((تور توغونه له ختیځه راپورته کېږي او هغه خلک چې د پالان لرونکیو اوښانو غوندې وي، په لاس کې به یې نیولي وي، هغوی اوږده وېښتان لري، نسبونه یا د نسب لړۍ یې په سیمې پورې تړل کېږي او نومونه به یې تعظیمي یا کنیه وي.))

دا هم د هغوی له ځانګړنو څخه شمېرل کېدای شي، چې د جګو او ځواکمنو ونو (قامتونو) او څېرو درلودونکي دي او لوی- لوی کالي به یې پر تن وي، ته به وایې چې د پالان لرونکیو اوښانو غوندې دي. د سر وېښتان او ږیرې پرېږدي او د نسبونو لړۍ به یې په سیمې پورې تړل کېږي، له کومه ځایه چې راروان شوي وي او نومونه به یې کنیه وي (لکه: عبدالسلام ضعیف، عبدالحی مطمین او....) مګر لویدیځ کله او څنګه د هغوی پر لوري به راروانېږي چې جګړې پیل شي.

---

[1]- نعیم بن حماد، د الفتن کتاب، ۱۱۸ مخ.

## د تورو توغونو د سرکوبولو لپاره له خپلو توغونو سره د لویدیځ راتلل (د ترهګرو سرکوبول)

د طالبانو یا د تورو توغونو د ځبنتنانو صحنې ته تر راوتلو وروسته او هغه اختلاف چې په افغاني مسلمانانو کې رامنځته شو، پرته له شکه د لویدیځ د ځناورو غونډې برید او هرار ځیزه راټولېدنه پیل شوه. لویدیځوالو دا بهانه تر لاسه کړه او دا وخت یې غنیمت وګانه چې ښکار، هر څومره چې زر کېږي، له پښو وغورځوي او د دوی په ګومان ښه او غوړه کپله (نوړی) زر تر زره تېره کړي، ولې.... ړوند لوستلي وو.... او په ناسمه توګه یې پرېکړه او محاسبه کړې وه. پرته له شکه دوه لاسه کېدل د ډېر تریخوالي رامنځته کوي او د انسان ځواک او قوت له منځه وړي. په ځانګړې توګه د مجاهدینو تر منځ اختلاف چې د شوروي ((سره)) نظامي ځواکونه یې په ډېرې بې عزتۍ او بد حالت سره له خپلې خاورې څخه شړلي وو، رامنځته شو. نورو دښمنانو د هغوی د نابودېدو او لوټلو لپاره د تمې سترګې وګنډلې. په حقیقت کې اختلاف شر دی. لویدیز ځواکونه او صلیبي لښکرې له غرور، تکبر، جنګي ساز و سامان سره لکه له بم غورځونې، پرمختللو جنګي وسیلو او د نویو بدشکلو الوتکو څخه نیولې تر توغندیو، بمونو او ټولوژنو وسلو پورې د القاعده ځواکونو او طالبانو- د دوی په اند د ترهګرو- د سرکوبولو په بهانه سیمې ته راغي. هغوی به بیا- بیا دا اعلان کوي چې دغه جګړه لس کلونه

وخت نیسي او ښایي اوږده شي. پوښتنه دا ده چې آیا د ترهګرۍ د له منځه وړلو لپاره دغه وخت بسنه کوي؟
ګومان نه کوم چې د ټول افغانستان د لـه منځـه وړلـو او ایره کولـو لپاره دغو ټولو ورانوونکیو وسلو ته په پام سره تر لسو ورځو یا لسو ګړیو (ساعتونو) څخه زیات وخت ونیسي. نو مسئله څرګنده ده او موخه مخکې تر مخکې ټاکل شوې ده. یوه اوږده ((صلیبي)) جګړه پر ټولې نړۍ د واک چلولو لپاره ده.

## هغه ښېړونه (اثار) او روایتونه چې د لویدیځ د لښکرکشۍ بیانوونکي دي

نعیم بن حماد په خپل سند سره له رجاء بن ابي سلمه او هغه له قبه بن ابي زینب څخه نقل کوي چې قبه بیت المقدس ته په ضمانت سره راغی. (رجاء وایي) چې **ما هغه ته وویل: ((ښایي له لویدیځه ډارېدې؟)) ویې ویل: ((لا ان فتنتهم لن تعدوهم ما لم تخرج الرایات السود، فاذا خرجت الرایات السود فخف شرهم.))** [1]
((نه، پایلات هیڅکله د هغوی له تنو نه راوځي، تر هغه وخته پورې چې تور توغونه راوتلي نه وي. کله چې تور توغونه راووتل، نو بیا د هغوی [لویدیځ] له شره وډار شئ.))

---

[1] - الفتن، ۱۱۵ مخ

د لويديځ پايلات او جګړې اوسمهال د تورو توغونو د څښتنانو په راڅرګندېدلو سره پيل شوي دي، نو څوک راڅرګندېږي؟ دغه ټکی راتلونکی حديث بيانوي.

۱- نعيم بن حماد په خپل سند سره له زهري څخه روايت کوي چې ويل يې: ((**اذا اختلف الرايات فيما بينهم اتاهم الرايات الصفر**.))[1]

((هغه وخت چې د تورو توغونو څښتنان له يوه بل سره اختلاف وکړي، زيړ توغونه به د هغوی پر لوري راشي.))

نو د طالبانو او د شمالي ټلوالې تر منځ تر اختلاف وروسته له صليبي لويديځ څخه زيړ توغونه د هغوی پر لوري راوخوځېدل، کاشکې چې درس يې اخيستی وای او د لرې مودې لپاره يو شوي وای.

مګر روايتونو ته په پام سره، لويديځ کولی نه شي چې هغوی په بشپړه توګه له پښو وغورځوي او د همدغو تورو توغونو د څښتنانو له خوا به له مهدي سره مرسته وشي. لنډه دا چې لويديځ ځواکونه راغلل او د ((ګوډ)) بولندوی په بولنه (امر) د مصر له سويس کانال څخه تېر شول چې په اړه يې نورې څرګندونې په لاندې ډول دي.

---

[1]- الفتن، ۱۶۰ مخ، د روايت پاتې برخې (ادامه) به په بل ځای کې راشي.

## ((ګوډ)) بولندوی او د سویس له کانال څخه د لویدیزو ځواکونو تېرېدل

د پېړیو په اوږدو کې د لیکي نسخو او نبنو تر راټولولو او کتنې وروسته، انسان د اریاتتیا او حیرت ګوتې په غاښ کړي چې په دغو نبنو کې له ټولو هغو چارو او کارونو څخه بحث شوی چې یوه تر بلې وروسته پېښېږي او عینیت مومي یانې وبه لیدل شي. مګر دغه اریاتتیا نور هم کښښ پیدا کوي چې موږ پوهېږو، هر هغه څه چې ویل شوي، د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم وینا او یا یې د اصحابو او ملګریو ویناوې دي چې له حضرت محمد صلی الله علیه وسلم څخه یې اورېدلي او یا رانقل کړي دي. څه اریانوونکې ده د عراق او شام له محاصرې څخه خبر ورکول او څه اریانوونکې ده، هغه پېښې چې د ننیو ورځو د پېښو په هکله خبر ورکوي. څنګه کولای شئ چې د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم هغه نغوته تفسیر کړئ چې د ځواکمنو او جګو ونو د خلکو په اړه چې د سر وېښتان اوږده او رېږې پرېږدي، توري پټکۍ پر سر کوي او سپین کالي به اغوندي چې ټول خلک به اریانوي او له ختیځه (افغانستانه) به راڅرګندېږي، تر دې چې یو له بله به سره اختلاف کوي او لویدیځ به د جګړو او جنګونو د پیل لپاره په هغوی پسې راځي. څه ډول د لویدیځ لښکر له طالبانو سره د جګړې لپاره د سویس له کانال څخه تېر شو. د روایت تر ټولو زیاته اریانوونکې

خبره دا ده چې د برید کوونکیو ځواکونو د مشر د «ګوډوالي» ځانګړنه بیانوي. هغه وخت موږ ولیدل چې د ګډو ځواکونو مشر په نظامي قرارګاه کې د حاضرېدو لپاره د دوو امساګانو په مرسته خوځېده او لومړنۍ وینا یې د تورو توغونو د ښبتنانو پر بله (ضد) د برید لپاره ګډو ځواکونو ته وکړه.

## په دغه هکله یو لړ حدیثونه او روایتونه

۱- نعیم بن حماد له زهري څخه نقل کوي چې ویل یې: «**اذا اختلف الرايات السود فيما بينهما اتاهم الرايات الصفر، فيجتمعون في قنطرة اهل مصر فيقتتل اهل المشرق و اهل المغرب سبعاً، ثم تكون الدبرة على اهل المشرق حتى**....»[1]

«کله چې د تورو توغونو د ښبتنانو تر منځ اختلاف وشي، زېړ توغونه به په هغوی پسې راځي، هغوی به د کانال له یوې څنډې سره راټولېږي. وروسته ختیځوال او لویدیځوال به اووه ځلې له یو او بله سره جګړه کوي، وروسته ختیځوال ماتې خوري، تر څو....»

لویدیز لښکر چې د ختیځ پر لوري راروانېږي، د سویس له کاناله تېرېږي چې افغانستان تر برید لاندې ونیسي او د ختیزو او لویدیزو لښکرو تر منځ جګړه پیلېږي. څرګنده نه ده چې دغه جګړه به اووه کاله اوږدېږي یا اووه ورځې. البته زما په اند له ځینو روایتونو څخه

[1]- الفتن، ۱۶۰ مخ، د روایت پاتې برخې به په بل ځای کې یادې شي.

چې نعيم بن حماد د ارطاة بن منذر له وينا څخه د الفتن د کتاب په ۱۶۳ مخ کې رانقل کړی دی، اووه ورځې يې ښودلي دي.

## ريچارډ مايرز «ګوډ» د ټولو ځواکونو بولندوی

۲- نعيم بن حماد په خپل سند سره له کعب څخه نقل کوي چې ويل يې: **«علامة خروج المهدی الوية تقبل من المغرب، عيها رجل اعرج من کندة.»** [1]

«د مهدي راڅرګند بدلو نښه توغونه دي چې له لويديځه راځي او د دغو توغونو بولندوی د کندې [2] له سيمې څخه يو ګوډ سړی دی.»

فکر نه کوم، امريکايان يو ګوډ شخص د ګډو هوايي، زمکنيو او سمندري ځواکونو بولندوی دې وټاکي، بلکې تر سترګو کېږي چې ښايي د «اعرج» يا ګوډ له کليمې څخه يې موخه يو کمزوری او د کمې وړتيا شخص دی او ډېر کم به تر سترګو کېږي چې د نړيوالو ځواکونو غټ بولندوی يو ګوډ شخص دی. آن په ډېرو حالتونو کې دا ډول بولندوی په بد پال سره نيول کېږي او د ده کمزورتيا پر لښکر يې هم دلالت کوي. مګر هغه وخت چې مې وليدل جنرال ريچارډ مايرز چې پر دوو امساګانو خوځېده، امريکايي ملت ته يې د

---

[1]- الفتن، ۲۰۵ مخ.

[2]- په پورتني روايت کې د کندې له سيمې څخه د کاناډا سيمه عبارت ده او ريچارډ مايرز هم د کاناډا د پوځونو مشر ؤ. «ژباړن»

افغانستان پر وراندې د هوايي، زمکنیو او سمندري بریدونو په اړه خبر ورکاوه. ومې ویل: الله اکبر، ای د الله جل جلاله رسوله صلی الله علیه وسلم! تاسې رښتیا ویلي، د کندې له سیمې څخه د یوه ګوډ شخص تر بولنې لاندې د لویدیځ د ګډو ځواکونو توغونه په خوځښت راغلل، د جګړو پیل دی او پر الله جل جلاله سوګند یادوم چې همدا د مهدي د راڅرګندېدلو له نښو څخه ګڼل کېږي.

که چېرته موږ د امریکایي ځواکونو د ګوډ مشر په اړه اریانتیا کوو، باید د یوه بل متن یا عبارت په اړه ډېره اریانتیا وکړو چې هغه هم نعیم بن حماد روایت کړی دی (۱۷۴ مخ). هغه همدغه ګوډ شخص دغه ډول څرګندوي: ((**ثم یظهر الکندی فی شارة حسنة.**))

((وروسته به کندي په ښې او ښکلې څېرې کې راڅرګند شي.)) که چېرته هغه ګوډ شخص ته په ښکلیو نظامي کالیو کې چې د نظامي نښانونو او درجو درلودونکي دي، وګورئ پرته له درنګه به ووایئ: ((سبحان الله- ټوله سپېڅلتیا الله جل جلاله لره ده.))

رښتیا دي چې د مهدي راڅرګندېدل خورا ډېر رانږدې شوي دي، څکه چې ګوډ جنرال (کندي) پیدا شوی دی.



# درېيمه برخه

- له لومړۍ نړيوالې جګړې څخه د مهدي تر راڅرګندېدو پورې

د لېږديز يا هجري کال د درېيمې پېړۍ د نسخو په يوه نادر روايت کې چې د استانبول په کتابتون (دارالکتب الاسلاميه) کې ساتل کېږي او په هغه کې له کوښت سره د عراق د جګړې يادونه شوې ده، له ابو هريره رضی الله عنه څخه نقل شوی؛ هغه دغه روايت تر يوې مودې پورې پټ ساتلی ؤ، مګر په پای کې يې هغه بيان کړ. د ((المهدی المنتظر علی الابواب)) کتاب ليکوال هغه داسې رانقل کړی دی: **((حرب اخر الزمان حرب کونية، المرة الثالثة بعد اثنين کبريين يموت فيهما خلائق کثيرة، الاولی اشعلها رجل کنية السيد الکبير، و تنادی الدنيا باسم [هتللر]....))**

((د وروستني زمانې جګړه يوه نړيواله جګړه ده، د درېيم ځل لپاره تر دوو سترو جګړو به وروسته پېښېږي. په هغې کې به ډېر خلک وژل کېږي. لومړنۍ جګړه به هغه شخص چې کنيه به يې [ستر ښاغلی] وي او نړۍ به هغه د هټلر په نامه يادوي، ژبغړانده کړي.))

دا هماغه روايت دی چې ابو هريره، ابن عباس او علي بن ابی طالب رضی الله عنهم رانقل کړی دی او په يوه بل روايت کې راغلي دي چې ابو هريره رضی الله عنه د دغه روايت له رانقلولو څخه وېره درلوده، مګر کله چې د مړينې پولې ته نږدې شو، له دې وېرې چې الله جل جلاله مه کړه يوه پوهه (علم) يې پټه ساتلې وي، هغه يې راڅرګنده کړه. هغه مهال يې شاوخوا خلکو ته وويل: **((فی نبا علمتا عما هو کائن فی حروب اخرالزمان. فقالو: اخبرنا ولا باس جزاک

الله خيراً. فقال: فی عقود الهجرة بعد الالف و ثلاثماة واعقدوا عقـودً يری ملک الروم ان حرب الدنيا كلها يجب ان تكـون، فـارادالله لـه حربا.... ولم يذهب طويل زمن. عقد و عقـد فـسلط رجـل مـن بـلاد اسمها (جرمن) له اسم الهر، اراد ان يملک الدنيا و يحارب الكل فـی بلاد ثلج و خير، فامسی فی غضب الله بعد سنوات نـار، اراده قتـيلا سرِ الروش او الروس.

و فی عقود الهجرة بعد الالف و ثلاثماة، عد خمسا او ستاً يحكم مصر رجل يكنی (ناصر) يدعوه العـرب (شـجاع العـرب). و اذلـه الله فـی حرب و حرب و ما كان منصورا، و يريدالله لمصر نـصراً لـه حقـا فـی احب حرب شهوره و هو له، فارضی مصر رب البيت و العـرب باسـم سادا، ابوه انور منه، لكنه صالح لصوص المسجد الاقصی بالبلد احدی عينيه كسَل قليل، و اسمه من الصدام و هـو صـدام لمـن عارضـه، الدنيا جمعت له فی (كوت) صغير دخلها و هو مدهون و لا خيـر فـی السفيانی الا بالاسـلام و هـو خيـر و شـر. والويـل لخـائن المهـدی الامين.

وفی عقود الهجرة الالف و اربعماة و اعقد اثنـين او ثلاثـاً.... يخـرج المهـدی الامـين و يحـارب كـل الكـون يجمعـون لـه الـضالون و المغضوب عليهم، والذين مَرَدوا علی النفـاق فـی بـلاد الاسـراء و المعراج عند جبل مجدون، و تخرج لـه ملكـة الـدنيا والمكـر، زانيـة اسمها (امريكا). تراودالعالم يومئذٍ فی اعلی عليين يملكون المدينة

**المقدسة. و کل البلاد تاتی من البحر و الجو الا بلاد الثلج الرهیب والحر الرهیب و یری المهدی ان کل الدنیا علیه بالمکر السیئی، و یری الله اشد مکراً، و یری ان کل کون الله له، الیه المرج والمصیر، و کل الدنیا شجرة له ان یملکها فرعاً و جذراً (....) فیرمیهم الله باکرب رمی و یحرق علیهم الارض و البحر و السماء و تمطر السماء مطر السوء، و یلعن اهل الارض کل کفار الارض، و یاذن الله بزوال کل الکفر.))**

((د یوې پېښې په اړه مې معلومات تر لاسه کړل، د هغه څه په اړه چې په وروستنۍ زمانې کې به پېښېږي. خلکو ویل: [که چېرې موږ ته معلومات راکړئ، کومه ستونزه نه لري، الله جل جلا له به تاسې ته د خیر جزا درکړي.] ویې ویل: [له یو زر او درې سوه یم لېږدیز کال څخه څو لسیزې وروسته، د روم پاچا داسې انګېرې چې د جګړې پېښېدل په ټوله نړۍ کې اړین او حتمي شوي دي، نو الله جل جلاله ورته د جګړې اراده کوي [یانې الله جل جلاله یې په جګړه کې ښکېلوي- ژباړن.] ډېر وخت نه تېرېږي، لس کاله وروسته او لس کاله نور، تر دې چې د [جرمن یا المان] له سیمې څخه یو کس چې د پېشو نوم به لري، پر نړۍ به د ولکه کولو هوډ کوي او په ټولو یخو او بډایو یا سرمایه لرونکیو زمکو کې به مبارزه کوي. تر څو کلونو وروسته د الله جل جلاله د قهر له امله په اور کې لوېږي او [روش یا روس] د پټو یا خفیه کارکوونکیو له خوا وژل کېږي.

له یو زر او دري سوه یم لېږدیز کال څخه څو لسیزې وروسته، د پېنځو یا شپږو لسیزو تر تېرېدلو وروسته پر مصر به یو شخص چې د هغه کنیه به [ناصر] وي، واکمني کوي، عربان به هغه د عربانو د زړور او توریالي په نامه یادوي. الله جل جلاله هغه په یوې جګړې او تر هغې وروسته په یوې بلې جګړې کې کمزوری کوي او هیڅکله نه کامیابېږي. الله جل جلاله غواړي چې د مصر مرسته وکړي او دغه مرسته چې د هغه حق دی، په غوره میاشتو کې چې د روژې یا رمضان ده، صورت نیسي او ترسره کېږي. مصر د کورونو پر درلودلو خوښوي او عربان د غنمرنګي سادا [سادات] په وسیله چې پلار یې تر هغه ډېر ورنګن [انور] دی، کامیابېږي. خو هغه د اقصی د جومات له غلو سره د غمګینې زمکې پر سر سوله کوي. او د شام په عراق کې یو ستمګر شخص.... او.... سفیاني دی، په یوه سترګه کې یې لړه سستي ده او نوم یې له تکر څخه اخیستل شوی دی او هغه تکر کوونکی [صدام] دی، له هر هغه چا سره چې ښکېل شي. نړۍ ورته په کوچني [کوت] کې چې هغه به ورننوتی وي، راټولېږي. هغه غوښن دی. د سفیاني لپاره پرته له تسلیمېدو څخه هیڅ خیر نه شته. البته په هغه کې خیر و شر دواړه شته. هلاکت د هغه چا لپاره چې له مهدي امین سره ټکي او خیانت کوي.

له یو زر او څلور سوه یم لېږدیز کال څخه څو لسیزې وروسته، دویمه یا درېیمه لسیزه.... مهدي امین راڅرګندېږي او له ټولې نړۍ سره د

مخامختيا لپاره راپورته کېږي، له هغه سره د مخامختيا لپاره بېلاري [ګمراهان] او هغه کسان چې د قهر او غضب وړ وي [يهود او نصارا] او هغه کسان چې يووالی نه لري، د اسراء او معراج پر زمکه د مګدون د غره تر څنګه راټولېږي. او له هغه سره د مخامختيا لپاره د نړۍ او چل ملکه راوځي، هغه لکه بدکاره ښځه ده او نوم به يې [امريکا] وي، د نړۍ خلک به د بېلارۍ او کفر لوري ته رابولي. د نړۍ يهوديان به هغه مهال پر لوړو زمکو [عليين] کې ژوند کوي او هغه به پر سپېڅلي ښار او ټولو سپېڅليو ځايونو ولکه لري.
پرته له وېروونکيو يخو سيمو او ګرمو او سوزوونکيو زمکو څخه ټول هېوادونه له هوا او سمندر څخه به د جګړې لپاره چمتو کېږي او مهدي به ويني چې ټوله نړۍ به د هغه د مخامختيا لپاره په چل او مکر کې وي او د الله جل جلاله نيونه سخته ګڼي او ويني چې د الله جل جلاله ټوله پينۍ [کاينات] له هغه سره ده، راستنېدنه او رجوع هغه ته ده. او ټوله نړۍ د هغه لپاره د يوې ونې ببلګه لري او هغه د ريښو او ښاخونو څښتن دی [....] نو الله جل جلاله پر هغوی د تېرو يو سخت باران وروي او زمکه، سمندر او اسمان به پر هغوی سخت دردوونکی باران ووروي. او د زمکې وګړي به پر ټولو شتو کافرانو لعنت وايي او زيارې [ښکنځلې] به ورته کوي، هغه مهال به الله جل جلاله ټول کافران له منځه وړي.))

## د څو ټکو څېړنه

پورتنی روایت له اريانوونکيو روايتونو څخه ګڼل کېږي چې جليل القدر صحابي ابو هريره رضی الله عنه هغه رانقل کړی دی او په «لنډه څېړنه» کې مې وويل چې يو لړ اريانوونکي روايتونه د هغوی د رانقلوونکيو او د اخځ په يادولو سره بيانوم او د دغه ډول روايتونو پازه د هغوی پر اوږو وراچوم او که چېرې ما دغه ډول روايتونه، نه منلی، نو هغه مې نه رانقلول. دغه ټکی ناويلی پاتې نه شي چې ابو هريره رضی الله عنه د حضرت محمد صلی الله عليه وسلم د روايتونو د يادولو لپاره ځواکمن يادښت (قوي حافظه) درلوده، ځکه چې حضرت محمد صلی الله عليه وسلم د هغه لپاره په دې اړه دعا کړې ده. لکه څنګه بخاري په کتاب العلم کې دغه روايت له هغه څخه رانقل کړی دی: «**حفظت من رسول الله صلی الله عليه وسلم وعاءين، اما احدهما فقد بثثته و اما الاخر فلو بثثته قطع هذا البلعوم.**»[1]

«د الله جل جلاله له رسول صلی الله عليه وسلم مې دوې پوهې زده کړې. يوه مې د خلکو په منځ کې خپره کړه، او مګر بله، که چېرې هغه مې هم خپرولای، نو مری مې غوځېدله.»

علامه ابن حجر په «فتح الباري» کې ياده کړې ده چې ابو هريره رضی الله عنه د واکمنو او پاچاهانو نومونه د پلار له نومونو سره يې

[1] - بخاري، صحيح بخاري، کتاب العلم، باب حفظ العلم، ۲۱۳ مخ.

یو ځای پېژندل. هغه لومړی دغه پوهه پټه وساتله، مګر د مرګ تر وررسېدلو وړاندې، د دې لپاره چې د پوهې د پټولو د ګناه مرتکب نه شي، هغه یې هم ښکاره کړه. ښايي پورتني روایت له همدې ډول روایتونو څخه وي.

ښايي «نوستراداموس» خپل معلومات د نړیوالو لیکي نسخو له تدوین شویو روایتونو څخه تر لاسه کړي وي، هغه چې مخکې مو هم یې یادونه کړې ده. په پورتني روایت کې د لومړۍ نړیوالې جګړې، دویمې نړیوالې جګړې او دریيمې نړیوالې جګړې چې د رارسېدلو په اوتا کې ده، یادونه شوې ده. د دغو جګړو نېټې او د هغوی د مشهورو خلکو لکه: هټلر، ناصر، انور سادات او صدام حسين ښکاره شوي ده. پرته له شکه هر یو له دغو خلکو څخه د جګړو په رامنځته کولو کې نخچ درلود.

## په پورتني روایت کې د دغو جګړو د اټکلي نېټو لپاره اټکلونه

د لومړۍ نړیوالې جګړې نېټه: «**فی عقود الهجرة بعد الالف و ثلاثماة و اعقدوا عقوداً....**»

«له یو زر او درې سوه یم لېږدیز کال څخه څو لسیزې وروسته، څو لسیزې به په شمار وي....»

یانې تر یو زر او درې سوه یم لیږدیز کال وروسته باید څو ناڅرګندې لسیزې وشمېرئ. دغه جګړه په ۱۹۱۴ زېږدیز کال مطابق ۱۳۳۲ لیږدیز کال کې پېښه شوه. ناڅرګنده او مبهمه شمېره دوه دېرشم کال شو چې دریمه لسیزه ده.

د دویمې نړیوالې جګړې نښه: ((**و لم یذهب طویل زمن عقد و عقد فسلط رجل من بلاد اسمها [جرمن] له اسم الهر اراد ان یملک الدنیا و یحارب الکل.**))

((نو زیاته موده نه تېرېږي، لس کاله او لس کلونه نور، تر دې چې یو شخص له [جرمن] نومې سیمې څخه چې د پېشو په نامه سره به یادېږي، پر نړۍ د ولکې او جګړې کولو لپاره هوډ نیسي.))

دوې لسیزې به نه تېرېږي، هغه جګړه چې ستر بناغلی (هټلر) یې پیلوونکی دی، پیلېږي او په جرمن (Germany) کې ورته خلک د هټلر په نامه غږ کوي. ((سبحان الله))

د دریمې نړیوالې جګړې نښه: ((**و فی عقود الهجرة الالف و اربعماة و اعقد اثنین او ثلاثاً.**))

((د یو زر او څلور سوه یم لیږدیز کال په لسیزو کې، دویمه لسیزه یا دریمه لسیزه وګنئ.)) یانې دغه جګړه د ۱۴۲۰ او ۱۴۳۰ لیږدیزو کلونو تر منځ به پېښېږي. اوسمهال هره شېبه شونې ده چې دغه جګړه پیل شي.

له پورتنیو متنونو څخه داسې څرګندېږي، چې: دواړه جګړې (لومړنۍ او دویمه) لویې دي، خو دریمه جګړه چې د ورونو زنځیرونه راشړنګوي، ((نړیواله)) جګړه به وي، یانې ټوله نړۍ به په کې ښکېله او ډوبه شي. نو دغه جګړه له لومړنیو دوو جګړو څخه سخته او د زیانونو رامنځته کوونکې به وي. د پورتني متن له څرګندونو څخه دغه ټکی هم څرګند شو چې یوازې د سکاندېنیاوي د یخو سیمو هېوادونه او د افریقا د قارې ګرمې او سوزوونکې ځمکې به په هغه کې کوم نخچ نه لري.
وروسته تر هغه، نوموړي متن یا عبارت د تاریخي پېښو ترتیب پلټي او د مهدي د راڅرګندېدو خبره تر نړیوالې جګړې وروسته رامنځته کېږي او دا چې څنګه د روم بېلارې او لعنتي لښکرې راځي او دا چې څنګه په کې خلک راټولېږي، حضرت محمد صلی الله علیه وسلم یې په هکله خبر ورکړی دی- په یوه بل ځای کې به دغه روایت په څېړنیز ډول بیان شي- د روم پاچاهان په پټه توګه په یوه ځای کې راټولېږي او وروسته د اتیاوو توغونو تر سیوري لاندې دولس زره کسیز لښکر چمتو کوي چې په ((لویه جګړه)) کې ګډون وکړي، دغه شمېره (۹۶۰۰۰۰) له دغې پاملرنې سره چې اروپا زیات وخت د لښکرکشۍ لپاره لګوي، ډېر کم تر سترګو کېږي. خو باید اریان نه شو چې نړیواله جګړه د لوی لښکر پر ماته بدلېږي او زیاتره خلک د مرګ کپله ګرځي. په همدې دلیل سره اروپا کولی نه شي

چې يو غټ لښکر راټول کړي، نو ځکه د لعنتي «امريکا» تر لاربښوونې لاندې يې مسلمانانو ته پام اوړي. هغه وخت به د مهدي راڅرګندېدا تر ستر ګو کېږي، هغه به له هغو (نامسلمانو) سره په «لويه جګړه» کې ننبته کوي او الله جل جلاله يې ملګرتيا کوي چې هغوی په سختۍ سره سرکوزي او کوزګوري کړي او ټول په يوې تباهۍ سره پوپنا کړي. هغه وخت به الله جل جلاله له زمکې، هوا او سمندرونو څخه پر هغوی اور راوروي او الله جل جلاله يې سخت رانيسي او د دوی دغه رانيونه به د نورو لپاره د درس او عبرت لامل ګرځي.

نوموړي متن يا عبارت «د عربانو د زړور يا توريالي» چې پر ۱۹۲۵ زېږديز کال د ۱۳۷۰ لېږديز کال مطابق حکومت کوي، د نامه يادونه کړې ده. پورتنی روايت وايي چې د يو زړو ديارلسم (۱۳۶۰) لېږديز په پينځمې او شپږمې لسيزو او بنايي په عبارت کې يو ويی (کلمه له منځه تللی يا ورک شوی وي چې «اوومه» وي، د دې لپاره چې خبرې له رښتينولۍ او واقعيت سره اړخ لګولی وي، خو بيا هم ټولې يادې شوې نښې له ورته پېښې سره يو ډول پېښې شوې دي. همدارنګه روايت دا هم څرګندونه کړې ده چې هغه په دوو جګړو (۱۹۵۶او ۱۹۶۷ زېږديزو کلونو) کې ماته خوري، البته نوموړي، عربان په لويديزو سياسي چال چلندونو او محاسبو سره خوښ کړل،

وروسته هغه لومړني عربان وستایل او وروستني عربان چې ربنتینولۍ ته یې پام شو، هغه ته یې د پړې او ملامتۍ ګوته ونیوله.
په همدې ډول دغه اریانوونکي روایت د پوه مشر د «انور» زوی «اسمر الساد» ته نازکه غوندې نغوته کړې ده چې هغه غنمرنګی سادا (سادات) دی، پلار یې تر هغه «انور» یا د ډېرې ښکلې څېرې څښتن دی، نو هغه «محمد بن انور السادات» دی، خو خلک به هغه ته انور سادات وایي. لوی الله جل جلاله خپله اراده د هغه په تنې کې وربښي او له هغه سره هغسې مرسته کوي چې مصریان او عربان به پرې ویاړ کوي، هغه به هم الله جل جلاله ته په خپلو غوره او نږدې میاشتو کې چې رمضان ده چې الله جل جلاله په کې قرآن مجید رالېږلی دی. خو «اسمر الساد» د اقصی د جومات له غلو سره چې یهودیان دي، په ویرجن او غمجن ښار کې د مېز تر شا د سولې لپاره کېني. (د ډیوېډ د پنډغالي [کیمپ] تړون)
همدارنګه په پورتني روایت کې د عراق د ستمګر واکمن «صدام» په هکله هم خبرې شوې دي او دا څرګنده شوې ده چې هغه «سفیاني» دی او له کویټ سره جنګېږي. د هغه په باره کې به په یوه بېل ځای کې بحث او څېړنه وشي.
په دغه متن یا عبارت کې، پرته له هغه څه څخه چې څرګند شوي دي، بل څه شتون نه لري. البته د اشعیاء په یانه (سفر) کې چې د واتیکان په نسخه کې شته، دومره زیات راغلي دي چې: «وروسته

سينا ته راغلل او د مصر له پاچا سره چې د دوی پر وړاندې يې ماته خوړلې ده، وجنګېدل، ټول خيانتونه، مکرونه د اسرائيلو د بريالیتوب لپاره دي.... او غنمرنګی پاچا راځي، له سره به يې وېښته تلونکي وي، خو د زمريو او ګوربتانو [بازانو] درلودونکی به وي، نو ځکه له اسرائيلو به غچ اخلي او له هغوی سره به خبرې کوي چې له يو له بله سره ملګري شي او يو ډول امنيت به د مصر ټولو خلکو ته ورسېږي، خو د دوی دغه غنمرنګی پاچا شهيد کېږي.
او يو پاچا چې د حام نوم به لري، د لږې مودې لپاره به حکومت کوي. خو هغه به له يهوديانو سره ژمنه ماتوي او له هغوی سره به په ښه او نېک ډول سره خبرې کوي، له جګړې به وېره لري، پر ده به بريد کوي او ختيځ او لويديځ به خوښ او راضي کوي. هغه به خپل ساتونکي ترور کوي، هغوی به اشرار او سوداګر وي.))
او يو پاچا به حکومت کوي چې د اوسپنې غوندې به سخت وي، د ختيځ او لويديځ له ټولو يهوديانو سره به په ښه ډول خبرې کوي او ټول سرتېري به د هغه لپاره راټولېږي او د اسرائيلو په زړه د سينا په دښته کې به جګړه کوي او درواغ ويونکي به خپلې خولې تړي.... په اسرائيلو کې به ناخوښي او اندېښنې راښکاره شي او په اورشيلم کې به يو ستر شر راپورته شي.
دغه متن يا عبارت څرګند دی او نورې څرګندونې ته اړتيا نه لري، ځکه چې زموږ له علمي پاتمږو څخه نه دی. البته له هغه ځايه چې په

اسلامي نسخو کې له زياتو راوړل شويو مطالبو څخه دغه متن يا عبارت رانغاړي، هغه مې راوړي دي.

## لومړۍ خبرې

مخکې مې ډېره هڅه کوله چې د هغو حدیثونو او روایتونو په تطبیق کې له هغې سره اوتا سره چې موږ پکې ژوند کوو، له یادولو څخه مې ډډه کوله، که څه هم د پېښو نېټې یا د هغوی د پېښېدلو ځای یا هغه خلک چې د دغو رامنځته کوونکي دي. وروستنۍ خبرې چې پر ژبه به مې راوړلې، دا وې چې: «دغسې به وشي، کېدای شي همداسې پېښ شي او نور ورته تعبیرونه.»
سربېره پر دې، له سختو فریادونو څخه په امن کې نه وم، یو وخت مې داسې وویل چې نصارا د «آرماګدون» د جګړې لپاره د ۲۰۰۱ زېږدیز کال د خزان موسم ټاکلی دی او زموږ په اند همداسې به وشي، البته له لږې اندازې وړاندېوالي یا وروسته والي سره او الله جل جلاله ډېر ښه پوهېږي. فریاد جوړوونکیو به ویل چې وګورئ، هغه یې نېټه ټاکي. دې ته په پام سره چې دوی پوهېدل چې دغه خبره له دقیقې ټاکنې څخه کیسه نه کوي، ځکه به ما ویل چې الله جل جلاله پوهېږي، داسې کېږي یا «لږ» وړاندې یا وروسته کېږي. دغه ټکی هم پر خپل ځای روښانه دی چې «لږ» شمېرل د نړۍ له مام سره په پرتلنه کې پر لږو کلونو دلالت کوي، نه ګړۍ او دقیقې، نو آیا هغه څه چې ما ویلي وو، دقیقه ټاکنه شمېرل کېږي!؟ همدغه فریاد او غوغا ده. والسلام

په یوه وخت کې يې وويل او ويې ښتل چې آیا ((فهد)) هماغه خلیفه دی چې الله جل جلاله به هغه ته اوږد مام ورکړي، د مهدي د راڅرګند ېدو نښه ده؟ والله اعلم
ويې ويل چې هغه یو ټاکلی شخص په پام کې لري او پر دې غوندې (جملې) يې بسنه ونه کړه او ويې ويل چې هغه یو له درباري عالمانو څخه دی، ځکه د پاچا د اوږده مام غوښتونکی دی. نه پوهېږم! آیا هغوی غواړي د هغه لپاره د مرګ غوښتنه وکړي؟ بیا هم نه پوهېږم، پر اوږدغوږي (خر یا آس) سپاره یو یا يې تر څنګه په خوځښت کې یو.... یا هغه په تالاو یا د اوبو ډنډ کې غورځوو او خپل ځان ژغورو.
د ((د اسلامي امت مام)) په کتاب کې د خپل باور د بیانولو لپاره د هغو احتمالي چارو په اړه چې د پایلاتونو په حدیثونو او د وروستني زمانې په جګړو کې راوړل شوي دي، له دغه ډول ویيونو لکه ((ښايي داسې وشي، آیا دغه شونتیا شته، ښايي دغسې پېښ شي، کېدای شي کله داسې هم وشي))، څخه مې ګټه پورته کوله. ډېره هڅه مې کوله چې روايتونه له هغې اوتا سره چې موږ په کې ژوند کوو، لیدونکی یا عیني تطبیق ورنکړم، البته دغه هڅه او لټون د مسئلې د جواز د نشتوالي له مخې نه وه، ځکه چې دغسې تطبیق او نږدېوالی روا دی، بلکې تر دې هم زیات، په ځينو وختونو کې د غالب اټکل شتون او سوګند یادول هم کومه ستونزه نه لري. خو ما نه غوښتل چې د جدال په ډګر کې ګام پورته کړم او خپل ځان د غوغا

پورته کوونکیو د بریدونو پر وړاندې او د هغو خلکو پر وړاندې چې
د زیاتې پوهې درلودونکي نه دي او دا مهال یې د پوهې په دره کې
گامونه لاسم شوي نه دي، ودروم. خو افسوس.... افسوس.
مګر اوس وروسته تر دې چې ټول خلک یا یوه لویه ډله له هغوی
څخه د جګړو او جنګونو په تمه ژوند تېروي چې اوزار (اسباب) یې
زیات شوي، د هغوی په زړه کې کینې زیاتې شوي او نږدې ده چې
ورونه هم راوټکوي. زه هم هیڅ خوښي او تازه والی یا ستونزه او
سختي په هغه څه کې د حدیثونو له انطباق څخه چې له پېښو سره پر
تړاو یې پوهېږم، نه وینم. بلکې کولای شم چې پر هغه څه چې ګروهه
او باور لرم، سوګند یاد کړم. دا اټکل هم نه کوم چې دا مهال دې
څوک دا مېړانه وکړي چې د حیا څپوټی دې له خپله مخه پورته کړي
او پر شر و شور یا جګړو (جدالتوب) دې پیل وکړي. البته هغه څوک
چې د شهرت، دندې او یا پیسو په لټه کې دي، بنایي دغسې یو ګام
پورته کړي، ځکه چې مسئله ډېره مهمه شوې ده او هیڅ وخت د
ګډوډۍ لپاره پاتې شوی نه دی او چاره یا کار داسې ځای ته
رسېدلی دی چې زړونه بېغمه شوي دي او پر جر و بحث د بوختېدو
پر ځای چې د قومونو د نابودۍ لامل ګرځي، د واقعي علم د موندلو
په لټه کې دي. اوس یو روایت له عیني واقعیت سره د حدیثونو د
اطباق کېدو د رواوالي لپاره او بلکې د غالب اټکل په صورت کې د
سوګند د جواز په توګه وړاندې کوم.

امام مسلم په صحيح مسلم كتاب (كتاب الفتن، باب: ذكر ابن صياد) كې په خپل سند سره له محمد بن منكدر څخه رانقل كړې دى چې هغه وويل: ((**رايت جابر بن عبدالله، يحلف بالله ان ابن صائد الدجال، فقلت: اتحلف بالله؟ قال: انى سمعت عمر يحلف على ذالك عند النبى صلى الله عليه وسلم فلم ينكره النبى صلى الله عليه وسلم.**))

((جابر بن عبدالله رضى الله عنه مې وليد چې سوګند يې ياداوه چې ابن صائد دجال دی. ومې ويل: آيا پر الله جل جلاله سوګند يادوې؟ ويې ويل: له عمر رضى الله عنه مې واورېدل چې د حضرت محمد صلى الله عليه وسلم پر وړاندې يې پر همدې مسئله سوګند ياد كړ او حضرت محمد صلى الله عليه وسلم يې هيڅ مخنيوی ونه كړ.))

سربېره پر دې حضرت محمد صلى الله عليه وسلم دا ويلي نه وو چې ابن صياد هماغه دجال دی. وروسته حضرت محمد صلى الله عليه وسلم هم له نړۍ څخه سترګې پټې كړې او د ((ابن صياد)) په هكله ورته هيڅ وحی ونه شوه، لكه څنګه چې حافظ ابن حجر په ((فتح الباري)) كې دغه مسئله له علماوو څخه رانقل كړې ده.

ابن صياد د يوه يهودي زوی او درواغجن دجال ؤ چې په مدينه كې يې ژوند كاوه. حضرت محمد صلى الله عليه وسلم دا ګومان كاوه چې هغه ((مسيحي دجال)) دی، خو په غوڅه توګه يې د هغه په اړه هيڅ څه ونه ويل. كله چې حضرت عمر فاروق رضى الله عنه

وغوښتل چې هغه ووژني، حضرت محمد صلی الله علیه وسلم يې د وژلو خنډ شو، ځکه چې حضرت محمد صلی الله علیه وسلم هيڅ له حقيقته خبرتيا نه درلوده چې آيا هغه هماغه دجال دی يا بل؟
سربېره پر دې عمر رضی الله عنه سوګند يادوي چې ابن صياد، مسيحي دجال دی او حضرت محمد صلی الله علیه وسلم هغه له سوګند يادولو څخه نه منع کاوه. جابر بن عبدالله، ابن عمر او نورو اشخاصو هم د غالب اټکل له مخې سوګند ياداوه او د حديثونو تړاو به يې له پېښې سره ورکاوه، خو چا به پر هغوی نيوکه نه کوله. د الله جل جلاله د نعمتونو ستاينه او هغه څه چې هغوی ته يې غوره والی ورکړی دی. له همدې امله ده چې پر غالب اټکل د عراق اوسنی واکمن ((صدام حسين)) هماغه سفياني شخص دی چې د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم په حديثونو کې يې يادونه شوې ده.
(سفياني هغه څوک دی چې د هغه د نسب لړۍ پر خالد بن يزيد بن ابي سفيان سره پای ته رسېږي.) صدام هم اموي دی او مور يې د کلب له قبيلې څخه ده او د کلب قبيلې د دجلې په شمال کې استوګنه درلوده او مشهوره ده چې ((صدام)) د تکريت له سيمې څخه دی چې د دجلې په شمال کې پروت دی.

## کومو څيزونو زه دې خبرو کولو ته اړ کړم

زياتې نښې او قرينې څرګندې شوې او حقيقت موږ ته څرګند دی. که څېرته ما پر خپل کار ګروهه نه درلوده، هيڅکله مې پر يوې داسې مسئلې بحث نه کاوه، مګر پوهېږم چې په دې ډګر کې زه له هيڅ ستونزې او زيان سره مخ کېدونکی نه يم او خبرې مې لکه د عمر د خبرو غوندې دي چې هغه ته به الهام کېده او جابر چې حديث به يې اورول. هغوی به ويل: ((پر الله جل جلاله سوګند يادوم چې ابن صياد هماغه دجال دی.)) او عمر رضی الله عنه او جابر رضی الله عنه هيڅ زيان د ابن صياد له دجال کېدو يا نه کېدو څخه ونه کړ.

زه وايم چې زياتو قرينو زه دغې خبرې کولو ته اړ کړم چې هيڅوک د هغې په بيان کې له ما څخه وړاندې شوی نه دی، چې په ټوله کې له اټکلي پوهې څخه دغه قرينې افاده کوي او داسې دي چې انسان کولی شي، پرته له هغوی څخه سوګند ياد کړي.

## له دغو قرينو څخه

۱- هغه څه چې ما په دې کتاب او په مخکېنيو کتابونو کې ويلي دي او يو زيات شمېر ليکوالو په خپلو کتابونو کې ليکلي دي چې موږ د وروستنۍ زمانې د جګړو په ورونو کې ولاړ يو او ما خو په دې کتاب کې يو بل ټکی هم زيات کړی دی چې د روم او سمهالې جګړې

له افغانستان، وروسته له عراق او پاتې نورو هېوادونو سره د ((ترهګرۍ)) د سرېخناک ویي تر سرلیک لاندې پیل کړي دي.
یوه مسئله چې د امت د علماوو له مخې د وروستنۍ زمانې د جګړې په اړه ثابته شوې ده، دا ده چې د مسلمانانو لاربښوونه او قیادت به په دغو جګړو کې د مهدي په لاس وي او د هغه راڅرګندېدنه به په نړیواله جګړه کې تر ((آرماګدون)) وړاندې وي. هغه به تر جګړې وړاندې یا د جګړې په منځ کې او یا تر جګړې وروسته به راڅرګند شي. هغه څه چې د اسلام د ائمه په حواله په متواتر علم سره ثابت شوي دي، دا دي چې مهدي به په همداسې یوه وخت کې راڅرګند شي. د هغه تر راڅرګندېدو او شهرت وروسته، سفیاني شخص له هغه سره د مخامختیا لپاره لښکر لېږي او دغه سفیاني لښکر به په زمکه کې ښکته یا ننویستل شي. د پېښو په ترتیب کې دغې مسئلې ته زیاته روښانتیا ورکول کېدای شي. هغه وخت چې د مهدي د راڅرګندېدو مهال رانږدې شوی وي، سفیاني باید تر هغه وړاندې شتون ولري، ځکه چې هغه له مهدي سره یو لړ کارونه لري.
۲- دویمه قرینه یو روایت دی چې د درېیمې برخې په پیل کې د یوه اوږده روایت په بڼه راوړل شوی دی: ((... **و فی عراق الشام رجل متجبر... و ... سفیانی، فی احدی عینیه کسل قلیل و اسمه من الصدام و هو صدام لمن عارضه، الدنیا جمعت له فی [کوت] صغیر**

**دخلها و هو مدهون و لا خير فى السفيانى الا بالاسلام و هو خير و شر والويل لخائن المهدى الامين »**

«... او د شام په عراق کې يو ظالم... او... سفياني شخص دی، په يوه سترګه کې يې لړه سستي شتون لري او نوم يې له تکر کوونکي څخه اخيستل شوی او هغه تکر کوونکی [صدام] دی چې هر څوک، له هغه سره ښکېل شي. نړی ورته په کوچني [کوت] کې، چې نوموړی پکې ننوتی وي، راټولېږي او هغه غوښن دی او د سفياني لپاره پرته له تسليمېدو څخه هيڅ خير نشته، په هغه کې خير او شر دواړه شته او له مهدي امين سره خيانت کوونکی دې هلاک او تباه شي.»

دغه روايت په غوڅه توګه وايي چې د عراق ستمګر واکمن «صدام» دی او هغه تکر کوونکی «صدام» دی چې هر څوک له هغه سره ښکېل شي او په يوې ځانګړنې راوړلو سره يې د هغه پېژندنه کړې ده چې په هغه کې موندل کېږي يانې په يوه سترګه کې يې سستي او کسالت او هم يې يوه ورزه لوېدلې ښکاري او دا پېژندنه يې هم کړې ده چې هغه سفياني دی.

په همدې توګه په روايت کې راغلي دي چې هغه کوېټ ته ننوځي او نړی د هغه د مخامختيا لپاره راټولېږي او هم اوسمهال د ۳۷ هېوادونو ځواکونه د هغه د مخامختيا لپاره راټول شوي دي. يوه بله پېژندنه يا نښه يې دا ده چې په هغه کې خير و شر دواړه شته يانې

هغه خپل ځان مسلمان سني ښيي، خو د دين او واقعي سنتو منونکی به نه وي.
همدارنګه دغه متن يا عبارت دې تکي ته يوه نغوته لري چې هغه به له مهدي امين سره خيانت او تګي کوي او له هغه سره به مخامختيا کوي، په داسې حال کې چې د دې ورو، له هغه سره چې همځانګيز يا هممسلکی يې دی، مرسته وکړي، مګر هغه لومړنی کس دی چې له هغه سره د مخامختيا لپاره توغ پورته کوي. او دا د هغه د خيانت مانا ده....
۳- د هغو روايتونو او ننبېرونو په پامنيوي سره چې د سفياني تړاو له وروستنيو پېښو سره چې په عراق کې پېښې شوي دي او هغه څه چې په تېرو پاڼو (صفحو) کې د سفياني او مهدي د معاصر کېدلو او هغه کارونه چې په منځ- منځ کې رامنځته کېږي، دا پايله تر لاسه کېدلی شي چې د عراق اوسنی واکمن ((صدام حسين)) هماغه سفياني دی. هغه ننبې چې د سفياني په هکله ويل شوي دي او د صدام په شخصيت کې موندل کېږي، کېدلی شي لاندېنۍ خبرې يادې شي.

## الف: له محاصرې سره د سفياني تړاو

نعيم بن حماد - شيخ بخاري، په خپل سند سره له علي بن ابي طالب رضى الله عنه څخه روايت راوړي چې ويل يې: ((**اذا ظهر السفيانى لم ينج من ذالک البلاء الا من صبر على الحصار**.)) [1]

((کله چې سفياني راڅرګند شي، نو له هغه کړاو او مصيبت پرته له هغه چا څخه چې پر محاصرې صبر وکړي، څوک نه ژغورل کېږي.))

مخکې مې هم د مسلم په صحيح حديث کې د عراق د محاصرې په اړه يادونه کړې ده او دا مې هم يادونه کړې ده چې په هغه پسې وروسته به د شام زمکې هم په محاصره کې راشي او تر هغې وروسته به مهدي راڅرګند شي.

لکه څنګه چې د عراق نړيواله محاصره پر ۱۹۹۰ زېږديز کال د ((صدام حسين)) د واکمنۍ پر مهال رامنځته شوې ده او پورتنى روايت د محاصرې او سفياني تر منځ د يوه پول دريځ لري. هيڅ ستونزه نه وينم چې له شواهدو پرته ووايم چې د عراق ((صدام)) هماغه ((سفياني)) دى.

---

[1] نعيم بن حماد، کتاب الفتن، ۱۴۳ مخ، (۷۰۸) شمېره روايت

## ب: د فرات د سيند د تګلورې بدلېدل او د هغه پر څنډه د بابل د ښار ابادېدل

نعيم روايت رانقل کړی دی (۹۷۱ شمېره حديث) چې سفياني د فرات د سيند تګلوری بدلوي، دغه کار هم اوسمهال په اتفاقي ډول پېښ شوی دی او د فرات د اوبو د مهارولو لپاره نوی تګلوری د ۶۵۰ کيلو مترو په واټن ژور شوی دی، د فرات تګلوری د اغوار له سيمې څخه بدل شوی، دغه سيمه شوديارە يا وچه شوې ده او نوی تګلوری يې په کال ۱۹۹۳ زېږديز کې په رسمي توګه پرانيستل شوی دی. دغه کار د لومړي ځل لپاره په تاريخ کې رامنځته شوی دی او مشهوره ده چې «صدام» دغه کار ترسره کړی دی.[1]

البته نه پوهېږم چې آيا د صدام موخه له دغه کار څخه د سرو زرو يا د طلا د غره موندل دي چې فرات ترې مخ ګرځونه يا شاتګ (عقب نشيني) کوي، هماغسې چې په صحيحينو کې له حضرت محمد صلی الله عليه وسلم څخه يې روايت شوی دی يا بل څه؟

دغه پوښتنه هم پر خپل ځواک سره پاتې ده چې ولې غير عربانو عراق په محاصره کې راوستی دی او ولې د امريکا او برتانيې جاسوسي الوتکې د دغه هېواد په شاوخوا کې د معلوماتو پر راټولولو بوختې دي او د عراق د شتمنيو له تالان څخه لاس نه اخلي او هر کله بمباری کوي چې نه موخې ته سم رسېږي او نه دښمن له

---

[1]- د (البيان النبوي بدمار اسرائيل الوشيک، ۲۴ مخ) کتاب وګورئ.

ښنو غورځوي او ته به وايې چې نړيوالو ته دوکه ورکوي چې دغه ډول الوتنې او پروازونه د عراق د وګړيو د ساتنې او د هغوی مصؤنيت لپاره دي. نه پوهېږم چې آيا دغه کارونه هم له طلايي غره سره چې حضرت محمد صلی الله عليه وسلم يې په اړه خبرې کړې دي، تړاو لري او که څنګه؟

خو د بابل د ښار د جوړېدو په اړه په ۵۶۸ شمېره روايت کې داسې راغلي: ((**اذا بنيت مدينة علی شاطی الفرات.... حتی لا تمتنعوا عن ذل ينزل بکم و اذا بنيت مدينة بين النهرين بارض منقطعة من ارض العراق اتتکم الدهيماء.**))

**والاثر رقم** (۵۶۷) **يقول**: ((**ينزل علی نهر من انهار المشرق يبنی عليه مدينتان يشق النهر بينهما شعاً، جمع فيها کل جبار عنيد.**))

((هر کله چې د فرات پر څنډه يو ښار آباد شي.... که د دې توان مو نه درلوده چې د خوارۍ او ذلت واکې چې پر تاسې به رانسکته کېږي، په لاس کې واخلئ او هر کله چې د بين النهرين ښار د عراق له زمکو څخه لېرې په يوه لېرې سيمه کې جوړ شي، پر تاسې به کړاوونه او مصيبتونه راځي.))

د (۵۶۷) شمېرې روايت وايي: ((د ختيځ له سيندونو څخه يو سيند ښکته کېني چې پر هغه دوه ښارونه جوړ شوي دي او سيند د دوو ښارونو تر منځ درز او جداوالی پيدا کړی دی، هر ستمګر او کينه کښ به هلته راټولېږي.))

اوسمهال کلونه تېر شوي دي چې د ((بابل)) د ښار آبادي یا بیارغونه سر ته رسېدلې ده او پر ۱۹۸۷ زېږدیز کال د ګټې اخیستنې لپاره پرانیستل شوی دی.

## ج: د سفیاني د څېرې ځانګړتیاوې په ((صدام)) کې

ښایي دا په ناڅاپي توګه کله رامنځته شي چې یو کس له بل کس یا له ځو نورو کسانو سره د یو ډول څېرې یا ځانګړتیاوو درلودونکی وي. خو کله چې زیاتې نښې یا قرینې په پام کې نیسو، پر دې منښته یا اعتراف کوو چې د ((سفیاني)) د څېرې نښې د ((صدام)) په تنه کې په راوړل شویو روایتونو کې موندل کېږي. آن هغه نوم چې په تېر روایت کې ((صدام)) راغلی دی!!!

د ((صدام)) او سفیاني تر منځ هغه ځانګړنې چې په رانقل شویو روایتونو کې ګډې او مشترکې راغلې دي.

- غټ سر لري
- پر تن به یې د چیچک نښې وي.
- په یوه سترګه کې به یې سپین تکی او لږه سستي وي.
- رنګ به یې زېړ ته ورته سپین وي.
- وېښتان یې ګورګوتي (تاو راتاو) به وي.

- د لاسونو او پښنو د نریو اندامونو درلودونکی به وي (هر چا چې هغه لیدلی دی، ما ته یې ویلي دي چې د هغه اندامونه نري او مزبوت دي.)
نعیم بن حماد څو نښې د سفیاني په اړه راوړي دي: ((**السفیانی من ولد خالد بن یزید بن ابی سفیان، رجل ضخم الهامه، بوجهه اثار جدری و بعینه نکتة بیاض....)) [اثر رقم ۸۱۲، کتاب الفتن]**
((سفیانی د خالد بن یزید بن ابي سفیان له اولادې څخه دی، د غټ سر درلودونکی شخص دی، په څېرې او مخ کې به یې د چیچک نښې موندل کېږي او په یوه سترګه کې به یې سپین ټکی وي....))
[۸۱۲ شمېره روایت، له الفتن کتاب څخه]
((**السفیانی رجل ابیض، جعد الشعر**.)) [رقم ۸۱۴]
((سفیاني سپین پوستی شخص دی چې د ګورګوتي وېښتانو درلودونکی دی.)) [۸۱۴ شمېره]
((**یخرج رجل من ولد ابی سفیان فی الوادی الیابس فی رایات حمر، دقیق الساعدین و الساقین، طویل العنق، شدید الصفرة، به اثر العبادة...)) [اثر رقم ۸۱۵]**
((د ابو سفیان له اولادې څخه یو شخص تر سرو توغونو لاندې په وچه او شوډیاره زمکه کې راڅرګندېږي، هغه به د لاسونو او پښنو د نریو اندامونو درلودونکی وي، غاړه به یې هسکه او رنګ به یې زېړ

وي، په څېره [مخ] کې به يې د لمانځنې [عبادت] نښه وي.» [۸۱۵ شمېره روايت]

## د: سفياني ګډو ځواکونو ته دوه ځلې ماته ورکوي

نعيم بن حماد په خپل سند سره له خالد بن معدان څخه روايت رانقلوي چې ويل يې: «**يهزم السفيانى الجماعة مرتين هم يهلک.**» [۸۵۸]

«سفياني ګډو ځواکونو يا ډلې ته دوه ځلې ماته ورکوي، وروسته به خپله هلاکېږي.» [۸۵۸ شمېره روايت]

ياد شوی روايت د «ډله= جماعت» د مانا په ټاکلو کې څو احتماله لري. آيا له ډلې څخه موخه اهل سنت والجماعه ده چې سفياني ورته ماتې ورکوي يا د روم ډله او لويديزې لښکرې دي چې د عراق د سرکوبولو لپاره راټولې شوې دي؟

لومړنی مانا چې موخه يې د اهل سنت والجماعه له ډلې څخه ده، په غوڅه توګه د منلو وړ نه ده، ځکه د حديثونو په صراحت سره په وروستني زماني کې او د مهدي تر راڅرګندېدو وړاندې به مسلمانان هيڅ ډله او لاربنود ونه لري. لکه څنګه چې د «عمر الامه»، «القول المبين» او «رد السهام» په کتابونو کې مې دا ټکی ياد کړی دی. نو هغه کومه ډله چې سفياني ورته ماته ورکوي، د

دغو څرګندونو په پام کې نيولو سره د لومړنۍ ډلې مانا د منلو وړ نه ده.
نو له همدې امله هغه ډله چې سفياني هغوی ته ماتې ورکوي، په غوڅه توګه ويلی شم چې تړون کوونکي او نړيوال ګډ ځواکونه دي چې پر عراق د بريد او د ((صدام)) سفياني لپاره پر ۱۹۹۰ زېږديز کال راټول شوي دي. له کوچني ((کوت)) څخه د سفياني د ايستلو لپاره د ځواکونو د راټولېدلو په اړه مې چې هغه روايت راوړی ؤ، دغه ټکی ښه ترا تاييدوي.

## ايا سفياني په دغه جګړه کې کاميابېږي؟

دغې پوښتنې ته ځواب مثبت دی... ځکه ګډ ځواکونه چې له ۳۷ هېوادونو څخه جوړ شوي وو، پر دې ونه توانېدل چې خپلې وروستنۍ موخې ته چې د صدام واکمني له منځه يوسي يا هغه ووژني، جګړه پای ته ورسېده [1] او د عراق ملت پرته د پانګو له بېځايه کېدلو او له ځاني او مالي سختو زيانونو څخه به داسې شعار ورکاوه: ((**بالروح، بالدم نفديک يا صدام، الله اکبر لا اله الا الله امريکا عدوالله.**))

---

[1] - نوموړی کتاب د صدام د واکمنۍ تر ړنګېدو او د نوموړي تر وژنې دمخه ليکل شوی دی، نو د کتاب د منځپانګې د کټ مټ په رانقلولو کې مې هڅه کړې ده او ما په کې کومې ګوتوهنې يا زياتونې کړې نه دي. (ژباړن)

((اى صدامه! موږه خپلې وينې او ساوې ورکوو، الله اکبر، لااله الا الله، امريکا د الله جل جلاله دښمنه ده.))
نو کله چې ګډ ځواکونه خپلې موخې ته ونه رسېدل او صدام همداسې د واک پر ګدۍ ناست پاتې شو، آيا ويل کېدلی نه شي چې ګډو ځواکونو ماته خوړلې ده؟ همدارنګه له روايت څخه څرګندېږي چې امريکايان به يو ځل بيا له ترهګرۍ سره د مبارزې په پلمه پر عراق بريد کوي او ښايي د خپل پاموړ موخو ته ونه رسېږي.
البته اقتصادي ولکه يا محاصره د ماتې پر سرليک باندې بدلېدای نه شي، حضرت محمد صلى الله عليه وسلم د ابي طالب په قبيله يا دره کې درې کلونه محاصره ؤ، خو ماتې يې خوړلې نه ده او دجال به هم مهدي او د هغه ملګري تر ځلوېښتو ورځو پورې محاصره کړي او مشهوره ده چې مهدي همېشه بريالی دی او ماتې نه خوري، ځکه د جګړو پايلې د هغوی په پای کې څرګندېږي او د موخو له کتنې څخه دا په لاس راځي چې جنګيالي کولی شي د هغوی پر بريالیتوب او ماتې نظر ورکړي. پر دغو نښو سربېره نورې هم شتون لري چې موږ د نښو او روايتونو د همدومره اندازې پر يادولو بسنه کوو، ځکه چې همدغه مطلبونه د هغه څه لپاره چې زموږ موخه د هغه له بيان څخه ده- د الله جل جلاله په اجازه- بسنه کوي.[1]

---

[1]- د قرينو له جملې څخه چې هغوی د اعتبار وړ وينم او بلکې پرې ويارم، هغه خبر دی چې د ((بحيرې)) يو له پوهو او فاضلو مسلمانانو څخه چې نه زه هغه ←

وړاندې تر دې چې بل بحث ته ننوځم، اړتیا وینم چې دغه مطلب بنه ترا څرګند کړم چې په روایتونو کې پر دوو سفیاني اشخاصو بحث شوی دی. دویم سفیاني د لومړي سفیاني زوی دی او هماغسې به هغه هم عمل کوي او هغه به تر پلار زیات خطرناک وي.
نعیم بن حماد په کتاب الفتن کې دا روایت راوړي: ((**فی زمان السفیانی الثانی المشوه الخلق، هد بالشام حتی یظن کل قوم انه خراب ما یلیهم.**)) [**۶۴۶ حدیث**]

---

← پېژنم او نه هغه ما پېژني- رایې کړ. هغه د ((عمر الامه)) کتاب تر چاپ څو میاشتې وروسته له ما سره ټیلیفوني اړیکه ټینګه کړه او ما ته یې دا زېرى راکړ چې هغه حضرت محمد صلی الله علیه وسلم په خوب کې لیدلی دی چې حضرت محمد صلی الله علیه وسلم له موسکا سره یو ځای هغه ته د ((عمر-امه الاسلام و قرب ظهور المهدی)) کتاب ډالۍ کوي. هغه سرې سوګند یادوي چې درې میاشتې وړاندې یې د کتاب له خپراوي څخه دغه خوب لیدلی دی او دغه خوب یې له انډیوالانو څخه یوه ته ویلی دی. کله چې کتاب خپرېږي، هماغه انډیوال یې کتاب په بازار کې ګوري او هغه پېري (رانیسي) او هغه ته یې وړاندې کوي. هغه سوګند یادوي چې دا هماغه کتاب دی چې حضرت محمد صلی الله علیه وسلم ورته په خوب کې ورکړی ؤ. او هغه ته وایي چې دا زما د خوښې وړ یو لامل دی، خو دغه خبرې ما له ځانه سره پټې وساتلې. دغه د خوب شاهد مې د دې لپاره یاد کړ چې پوه شئ، هغه څه چې د وروستني زمانې په نږدې مهال کې نښې دي، حق دي او د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم په خوب کې لیدل حق دي او د ثبوت لپاره دلیل پورتني مطلب دی او ورځلوی ته په نږدې وختونو کې به د مؤمنانو خوب لیدنې زباتېږي، یا یې په خپله ویني او یا ورباندې لیدل کېږي.

«د دويم سفياني په زمانه کې چې د رندې ځېرې درلودونکی دی، د شام په زمکو کې ټکانونه يا لړزې رامنځته کېږي چې هر قوم داسې ګومان کوي چې شاوخوا سيمه يې خرابه يا ورانه شوې ده.»
اريانوونکې دلته ده چې د صدام حسين غټ زوی د همداسې رندې ځېرې درلودونکی دی، مګر خپله ځان د پلار ځايناستی ته چمتو کوي او غواړي چې د پلار سياستونو ته ادامه ورکړي، آيا هغه هماغه ځوک دی چې له مهدي سره د مخامختيا لپاره لښکر کشي کوي او لښکر يې په زمکه کې ښکته او خپرېږي يا دا چې پلار يې د دغو کارونو بار پورته کولای شي؟
راتلونکې ورځې او کلونه به له واقعيت څخه پرده پورته کړي. الله جل جلاله دې موږ له ټولو پټو او ښکاره بلاګانو څخه په خپله پناه کې وساتي.

## د ارماګدون په هکله پوهېږئ؟

- هماغه وېروونکې او ورانوونکې اټومي جګړه ده.
- هماغه درنده ستراتيژيکه جګړه ده.
- هماغه د نړيوالو ټرون کوونکيو جګړه ده چې د زمکې ټول وګړي يې په تمه دي.
- هماغه ديني او سياسي مخامختيا ده.
- هماغه تازه صليبي جګړه ده.
- هماغه د آشا (اژدها) جګړه Dragon War يا هراړخيزه جګړه ده.
- هماغه د تاريخ تر ټولو پرغزجنه (قهرجنه) او بېرحمانه جګړه ده.
- هماغه جګړه ده چې ترې ورانده يې ((سوله ساتې يا امنيتي ډله)) پر نړۍ سيوري خپروي او خلک وايي:

ارامي او امنيت دې راشي.

- بس هماغه آرماګدون دی.

## درېيمه نړيواله جګړه ((ارماګدون يا هرمجدون))

دغه عبراني ويی له دوو برخو څخه جوړ شوی دی، ((هر)) د غره په مانا او ((مجيدو)) د فلسطين په سيمه کې له سيند څخه عبارت دی، نو موخه ترې د فلسطين په سيمه کې ((د مجيدو غر)) دی.

دغه ساده او ټولپوهېدونکی (عام فهم) ويی د ژورو او زياتو مطلبونو او رسونو (پيغامونو) لرونکی دی چې د مسيحي روښاندو پر دماغو او په تېره د امريکا پر واکمنو په بشپړ ډول واکمني کوي او په بل تعبير سره اساسي انګېزه او د مسيحي لويد يزې نړۍ او د امريکا د سياسي تګلارې ټاکونکی همدغه يو ((ويی)) دی.

البته د ((د اسلامي امت مام)) په کتاب کې مې د آرماګدون په اړه د نړۍ د روښاندو، پوهو او رهبرانو ويناوې راوړې دي. ګران لوستونکي کولی شي چې هغه کتاب ته مراجعه وکړي. دلته هم يوه غونډله د ((آرماګدون)) د ويي په تړاو د هر پاړکي يا قوم مشرانو او د هغوی باور او ګروهې ته په نغوتې يا اشارې سره راوړم:

د امريکا پخوانی جمهور رئيس ((رونالډ ريګن)) وايي: ((پرته له شکه دا هماغه نسل دی چې آرماګدون به ګوري.))

د مسيحي بنسټپالو رهبر ((جيرفولويل)) وايي: ((آرماګدون يو تريخ حقيقت دی، يو مرکب حقيقت، خو د خدای ستاينه کوم چې پای به يې سخت وي.))

مشهور امريکايي ليکوال ((ګريس هالسل)) د ((خبر او سياست)) په کتاب کې ليکي: ((موږ د مسيحيت نړۍ همدارنګه پر دې ګروهه لرو چې د بشريت تاريخ به په هغې جګړې کې چې [آرماګدون] نومېږي، پای ته ورسېږي او دغه جګړه له مسيحي راستنېدنې سره چې پر ټولو ژونديو او مړيو به په يو ډول حکومت کوي، جوغه [تاج] به يې پر سر کېښودل شي.))
پورتني متنونه د ګريس هالسل له ((خبر او سياست))، د اورال رابرټسن له ((د تاريخ د پای نمايشنامه)) او د هال ليندسي له ((د زمکې د کرې ستر پای)) کتابونو څخه راوړل شوي دي او دوه وروستني ليکوالان چې په امريکا کې د ځانګړي شهرت درلودونکي دي، پر دې ګروهمن دي چې د زمکې کره به تر ۲۰۰۰ زېږديز کال يا د هغه په شاوخوا کې له منځه ولاړه شي.
آيا پوهېږئ چې ولې مسيحي لويديځ، رهبران، پوهان، روښاندي او د خلکو له ډلې څخه يې يوه ستره برخه دومره دغه ويي (آرماګدون) ته پام کوي!!؟
ځواب دا دی چې دغه ويی په ((انجيل)) کې چې د هغوی سپېڅلی کتاب دی، څو ځايه يې يادونه راغلې ده، هغه هم پرته له دې چې په دې کتاب کې زيات بدلون او تغير راغلی دی.
نو دغه ويی سپېڅلی دی او ورته سپېڅلې مانا هم شته او په همدې دليل سره د هغوی د پام وړ ټکی ګرځېدلی دی.

د رؤيا په يانه (۱۶/ ۱۶) کې راغلي دي چې: ((او د شيطان اروا هم نړيوال لښکر په هغه ځای کې چې آرماګدون نومېږي، راټولوي.))
دا د پوهو، روښاندو او د خلکو له ډلې څخه د يوې برخې ګروهه ده.
[1] څنګه چې مسئله د ګروهې (عقيدتي) ده، نو هغې ته ځانګړی پام هم کوي، خو رهبران او نظامي مشران د يوه بل دليل له مخې ورته پام کوي چې د ګريس هالسل په کتاب (۴۰ مخ) کې د هغه د نظرياتو د لوستنې په رڼا کې يې ګورو، هغه وايي: ((نظامي افراد- په ځانګړې توګه پخواني جنګيالي- د دغې سيمې لپاره په فوق العاده ستراتيژيکي اهميت سره قايل وو او ويل يې، هر چا چې پر دغې سيمې واک تر لاسه کړ، کولای شي چې جګړه په خپله ګټه پای ته ورسوي.))
زما په ګومان کېدای شي د همدې لامل په رڼا کې د لويديځ پر له پسې هڅې په فلسطين کې د يهودي حکومت د ځای پر ځای کولو

---

[1]- د يادونې وړ ده چې امريکايي سناتور جان مک کين دا څرګنده کړه چې له ايران سره پر هستوي برنامې د نظامي شخړې پايلې کولی شي، هغومره سختې وي چې د نړيوالې جګړې ((آرماګدون)) لامل شي. د نيوز مکس انټرنېټي وېبپاڼې د خبر له مخې سناتور مک کين د اېن بي سي شبکې ته ويلي: ((موږ له اروپايي متحدينو سره يو ځای د امنيت شورا ته ځو، موږ د بنديز لګولو په لټه کې يو او پر ايران بايد بنديزونه ولګول شي.)) هغه وويل چې که چېرته بنديزونه هم کار ونکړي، امريکا بايد د څه شي په وسيله له زوره کار واخلي.
(د آفتاب ورځپاڼه، ۱۵ وری ۱۳۸۵)

لپاره د «بالفور» په تړون او هراړخيزه دفاع کې يې د يهوديانو له مخ څخه يې پرده پورته کړه، څکه چې دغه دولت- چې هيلې او ارزوګانې يې د هغوی له هيلو سره همغږي لري- په «آرماګدون» کې د هغوی لپاره د نظامي قرارګاه حيثيت لري او هغوی نه غواړي چې هيڅ وخت د راتلونکيو حتمي شخړو د برنامو لپاره له لاسه ورکړي.
د اريانتيا خبره دا ده چې د «آرماګدون» په اړه د اهل کتابو ويناوې او د هغوی نظريې د يوه باور او اړين حقيقت په توګه چې په تمه يې ژوند کوي، همغږي لري او د دې اپوټه (برعکس) زياتره مسلمان د هغه په هکله نه پوهېږي او که چېرته يې څوک له راتلونکيو خطرونو او زيانونو څخه خبروي، د هغه پر وړاندې مورچل نيسي. په رښتيا هم انسان د هغه څه دښمن دی چې ترې خبرتيا نه لري.
د مسيحيت نړۍ پر دې ګروهمنه ده چې مسيح د ژغورنې خدای دی (Jesus is the Christ) او پرته له شکه په وروستنۍ زمانې کې به رابښکته شي او په ځانګړې توګه دا چې خطرناکه هستوي جګړه «آرماګدون» رامنځته شي، هغه له اسمانه راځي چې خپل پليوني (پيروان) له ځانه سره تر وريځو پورته يوسي او وېروونکې جګړې د سختيو له ليدلو څخه يې وژغوري. بلکې د هغوی د وينا مطابق په «بالکونې» کې د وريځو پر اوږو او مخ يې کېنوي، تر دې چې جګړه د پايلاتي (اشرارو) او په دقيق تعبير سره د «ترهګرو» په نابودېدلو سره پای ته ورسېږي.

حضرت مسيح عليه السلام هغوی ته وايي: ((همدارنګه زه به راشم او تاسې پورته کوم. خپلې ملياوې [ملاوې] مو وتړئ، خپل څراغونه مو روښانه پرېږدئ او تاسې د هغو په څېر شئ چې د خپل ښاغلي ښاوي [شاږو] په تمه وي چې څه وخت به ناوې ته راځي، چې راشي او ور تک- تک کړي، پرته له ځنډه ورته پرانېزي، خوښي د هغو غلامانو په حال چې بادار يې راشي او دی ويښ وي.)) [الوقا: ۱۲: ۳۵-۳۷]

په همدې دليل سره هغوی د ((آرماګدون)) په تمه دي، بلکې غواړي، هر څومره چې زر کېږي، مسيح عليه السلام زر راشي او پر راتګ سره يې ورته نغمې او سندرې وغږوي او وايي به: (O Jesus come) ((ای مسيحا راشه!!!)) او ((ملګريه!، ای مسيحا آمين! راشه)) آيا پوهېږئ چې هغوی پر دې ګروهمن دي، کله چې د نورو امتونو له منځه تللو زمينه چمتو يا د ((آرماګدون)) په جګړه کې پايلاتيان راټول نه شي، هيڅکله به دغه جګړه رامنځته نه شي.

له همدې ځايه ده چې د دغه ويي له زيانونو يا خطرونو څخه د نورو د خبرولو اړتيا ما ته د يوې مهمې مسئلې په توګه رامخته شوه او اړ يې کړم چې د ((آرماګدون)) په باره کې څه ليکنې د ليکلو په آډانه کې واچوم.

د ناسم پوهاوي (سؤ تفاهم) د لېرې کولو لپاره چې ځينې خلک په کې ښکېل شوي دي- الله جل جلاله دې ما او هغوی وبښي- وايم:

زما موخه د «آرماګدون» د لفظ او ویي په باره کې نه ده، بلکې زما موخه د هغه له مانا او دلیل څخه ده، ځکه چې دغه ویی د پراخې مانا درلودونکی دی. کله چې یوه ډله مسلمانان پر خبرو او لفظ اخته کېږي، له مانا یې مخ اړوي، یو بل ته مورچل نیسي او له هستې او زړه یې بې پروا کېږي، نو سملاسي د «آرماګدون» پر ویي ګوتنیونه او اعتراض کوي او وایي چې دغه ویی په سپېڅلیو سنتو کې راغلی نه دی. نو سترګې پټوي، زړه ته کولپ اچوي او ګوتې په غوږونو کې ږدي، تر دې چې دغه «ننویستنه یا بدعت» وانه وري.
زه د زړه سوي له مخې هغوی ته وایم:
دغه ویی له لفظ کېدلو څخه پرېږدئ او پر موخه او هدف یې ځان پوه کړئ. دا هماغه نړیواله ورانوونکې جګړه ده چې شونې ده هره شېبه د سترو ځواکونو یا ځواکمنو هېوادونو تر منځ پېښه شي او کېدای شي له هغې څخه د «درېیمې نړیوالې جګړې» په توګه تعبیر وشي او یوه شئ چې اهل کتاب به د هغې لمبې راپورته کوي او هغه «آرماګدون» [دغه نوی رامنځته شوی عجمي نوم نوموي....]
نو ځیر واوسئ چې آیا له دې پېژندنې سره موږ کولی شو، دغه ستونزې حل و فصل کړو او هغه لویه وېره چې د دغه «آرماګدون» نامه په یادولو سره یې په زړونو کې راپیدا کېږي، لېرې کړو.
آیا «آرماګدون» ستره جګړه ده؟
ځواب: هیڅکله نه.

ستره جګړه تر هغه وروسته پېښېږي او شوني ده چې «آرماګدون» له هغې څخه د لاندېنیو نښو په پام کې نیولو سره بېل کړو:
آرماګدون هغه جګړه ده چې نړیوال متحدین او د زمکې زیاتره اوسېدونکي به په هغه کې ګډون کوي. د جګړې آر یا اصلي منځی یا مرکز به په فلسطین کې د مګیدو دره وي؛ ورانوونکې اټومي جګړه به وي چې د ټولوژني وسلې به په کې له منځه ځي.
آرماګدون به د لویې جګړې لپاره یوه پیلیزه وي، څکه روم (امریکا او اروپا) د کمونېستي ختیځ (چین، روسیې او د هغوی د ترون کوونکیو) پر وړاندې له مسلمانانو څخه مرسته اخلي او خپلو موخو ته رسېږي، وروسته توره راوباسي او غابنونه تېره کوي چې مسلمانان په لویه جګړه کې له منځه یوسي.
د سترې جګړې نښې عبارت دي، له:
- **تر نړیوال ارماګدون څو میاشتې وروسته پېښېږي؛**
- **د صلیبي لویدیځ او مسلمانانو تر منځ مخامخ جګړه ده؛**
- **په «سوریه» او تقریباً د دمشق شاوخوا په اعماق او دابق کې به یې د پېښېدو ځای وي؛**
- **له هر ډول اختلاف پرته په دغې جګړې کې به مسلمانان د مهدي تر لارښوونې او قیادت لاندې وي؛**
- **دغه جګړه به د اس او تورې پر مټ وي؛**
- **دغه جګړه به څلور ورځې اوږدېږي؛**

په پای کې به د مهدي تر لارښوونې لاندې برياليتوب د مسلمانانو په برخه کېږي، البته دوې جګړې به پېښېږي: آرماګدون او لويه جګړه. په لومړۍ جګړه کې به برياليتوب د مسلمانانو او روميانو د ګډ لښکر په برخه کېږي او په سهي او سمې مانا سره، هغسې چې په روايتونو کې راغلي دي، هغوی (کمونېستي ختيځ او تړون کوونکي يې) به د روميانو دښمنان وي او په دويمه جګړه کې چې ستره جګړه ده، مسلمانان روميانو ته ماتې ورکوي.

کېدای شي وويل شي چې دوې جګړې په حقيقت کې د يوې جګړې څو پړاوونه دي، ځکه چې روميان تر برياليتوب وروسته چې د مسلمانانو د مرستې پېبره (محصول) ده، خپلو سيمو ته ستنېږي او له هماغه ځايه بيا دوی خيانت کوي او په ارادو او نيتونو کې يې خرابوالی رامنځته کېږي.

لکه څنګه چې حضرت محمد صلی الله عليه وسلم وايي: ((**و فی نيتهم الغدر.**)) ((د خيانت هوډ کوي.)) نو يوه اوږده جګړه په دوو پړاوونو او ښايي په څو پړاوونو کې پېښه شي چې له عراق څخه پيل شوې ده او پای يې په لويه جګړه کې دی. ښايي هغوی يوائې د آرماګدون نوم يادوي او د لويې جګړې په هکله څه نه وايي، لکه څنګه چې يوه اوږده جګړه ده، نو وروستنی پړاو يې ستره جګړه ده.

د روميانو د مشر- بوش- وينا د همدې دليل لپاره راوړو، هغه چې کله ويل: ((دغه جګړه يوه صليبي جګړه ده او دغه جګړه به لس کاله اوږدوالی ومومي.))
وړاندې تر دې چې د کتاب بلې برخې ته ننوځو، اړينه ده چې د حضرت محمد صلی الله عليه وسلم يو حديث چې د دغو جګړو په اړه زمــوږ د پوهولــو بنسټ او ستنه يــا پايــه جــوړوي، راوړو:
((**ستصالحونکم الروم صلحاً امنا فتغزون انتم و هم عدواً من ورائهم فتنصرون و تغنمون و تسلمون، ثم تنزلون بمرج ذی تلول فيقوم رجل من الروم فيرفع الصليب و يقول: [غلب الصليب]، فيقوم اليه رجل من المسلمين فيقتله فيغدر الروم و تکون الملاحم فيجتمعون لکم فی ثمانين غاية مع کل غاية اثنا عشر الفاً**)) [1]
((روميان له تاسې سره په امنيتي ډول سوله کوي، وروسته تاسې د هغوی له دښمنانو سره په جګړه کې ښکېلېږئ او په جګړه کې بريالي کېږئ او د غنيمت مال به تر لاسه کړئ او په بشپړه توګه سالم راګرځئ، وروسته د مرج ذي تلول سيمې ته راځئ. هغه وخت له

---

[1] - صحيح حديث: احمد، ابو داود، ابن ماجه او ابن حبان له ذي مخمر رضی الله عنه څخه هغه روايت کړی دی او آلباني د مشکاة پر حديثونو په خپله څېړنه کې هغه په ۵۴۲۴ شمېره حديث کې صحيح نيولی دی او په جامع صحيح کې يې هم نور روايتونه راوړي دي.
مرج ذي تلول په لبنان کې سيمه ده، د پورتنی حديث يادونه په ((د اسلامي امت مام)) او ((شرح مبين)) کتابونو کې راغلې ده.

روميانو څخه يو كس راپورته كېږي، صليب پورته كوي او وايي به: [صليب غلبه موندلې ده.]، پر ده پسې له مسلمانانو څخه يو كس پر هغه بريد كوي او هغه وژني. وروسته روميان خيانت كوي او جګړې پيلېږي او پر تاسې اتيا ډلې راټولېږي او تر هر توغ لاندې دولس زره كسان [جنګيالي] دي.»

## پر افغانستان بريد، د ارماګدون د لمبو پيليزه

څه ډول به دوې لښكرې جوړې شي؟ او ختيځوال او لويديځوال ځواكونه به د يوه او بل پر وړاندې كتارونه جوړ كړي؟ او په آرماګدون كې به د مخامختيا لپاره راټولې شي؟

آيا پر افغانستان د امريكا بريد د پورتنۍ جګړې لومړنۍ وړانګې او لمبې ګڼلى شو؟

په ځواب كې يې وايم: د امريكا او برتانيا (صليبي روم) خوځښت په افغانستان كې د ترهګريزو ژونكو (هستو) د سركوبولو په پلمه، آرماګدون ته د رسېدلو لپاره تر ټولو څرګنده او روښانه وسيله ده او كه نه په كمزوري افغانستان كې د اسلام د سركوبولو پلمه- او د امريكا له سره تر پښو پر وسلو سمبال ځواكونو سره، سره- له څو ګړيو (ساعتونو) يا څو ورځو څخه زيات وخت ته اړتيا نه لري. خو كله چې وايي، موږ غواړو چې تر لسو كلونو پورې به زموږ ځواكونه

په افغانستان کې پاتې کېږي، نو ځرګندېږي چې راغلي دي او همدلته پاتې کېدل غواړي.
راغلي دي چې پر يوه هېواد بريد وکړي او يو بل هېواد په خپله ولکه يا محاصره کې راولي او په هيڅ ډول به دغه ګام د ختيزې قرارګاه له خوښې سره برابر نه وي او همدغه مسئله ده چې تر دا مهاله يې هغه په ځرګنده توګه اعلان کړې ده او په همدې ترتيب سره د آرماګدون تر پېښېدو وړاندې د لښکرو د کتار جوړولو مانورې ترسره کېږي.
۱- امريکا او برتانيا پر عراق په دې پلمې سره چې دغه هېواد غواړي، يو ځل بيا خپل هستوي ځواک ورغوي يا دا چې پر امريکا، اروپا، اسرائيلو.... د ترهګريز مېکروبي بريد هوډ لري، بريد کوي. همدارنګه عراق- د چين او روسيې له خوا په نغوتې سرد- د اسرائيلو پر لور توغندي توغوي. دغه مسئلې تر يوې او بلې وروسته پېښېږي، لښکرې په خوځښت راځي او امريکايي ځواکونه او تړون کوونکي يې په اسرائيلو کې د يوې تلپاتې او ثابتې قرارګاه په توګه ځای پر ځای کېږي. له بل لوري د ختيز يا د چين او روسيې ځواکونه او متحدين يې په خوځېدو راځي او دغه لښکرې د مګيدو په دره کې د يو بل پر وړاندې کتارونه جوړوي او لويه نړيواله جګړه پېښېږي چې منځی يې آرماګدون دی او لمبې او وړانګې به يې ټوله سيمه په لمن کې رانغاړي. دا له کېدونکيو شونتياوو څخه يوه شونتيا ده.

۲- چین او روسیه له امریکایي او برتانوي ځواکونو څخه غواړي چې خپلو هېوادونو ته ستانه شي، ځکه چې په سیمه کې یې پاتې کېدلو زیات وخت نیولی دی او له خپلو بریدونو (سرحدونو) څخه وتي یانې تېری او تجاوز یې کړی دی او هغه موخه چې یې اعلان کړې وه او د هغې د مطلب ټکي تـه رسـېدلي وو، یـوه پوچـه او چټـي موخـه تـر سترګو کېدلـه. پـه ځـانګړې توګـه د هند پـه سـمندر، د عمـان پـه سمندرګي او د پارس په خلیج کې د دوی پر لـه پسې خوځېدنې او تګ راتګ د چینایانو او روسیانو وېره راپورتـه کـوي او ملي امنیت یې له ننګـونې (چېلنج) سره مخ کـوي... د خلـیج او د منځنۍ اسیا نفت او د خزر د سـمندرګي اوبـو تـه رسـېدل د دوی لـه هیلـو څخـه شمېرل کېږي.
مګر رومي ځواکونه (امریکا، اروپا او متحـدین یـې) دغـه ټکـي تـه د رد یا منفي ځواب ورکوي او په سیمه کې یې پاتې کېدل د وړاندېنې اعـلان پـر مطـابق او د امنیـت شـورا (امریکـا) پـر پرېکـړې او تـړون تېنګار کوي.
په همدې ترتیب سره د ختیځ و لویدیځ وېرې او ننګونې یا تهدیدونه د یوه او بل پر وړاندې راپورته کوي... وروسته آرماګدون پېښېږي.
البته په هر حـال سره د جګـړې ډګر او اصلي زمکـه یـې پـه اسرائیلو (آرماګدون) کې ده. لکه څنګه چې د امریکایي او اروپایي ځواکونو پر نظامي پنډغالي یا اډې بدلېږي.

په دې ټولو سناریوګانو کې رومیان له مسلمانانو مرسته اخلي او له هغوی سره سوله کوي. په دې مانا سره چې د هغوی نږدېوالی د خپل دښمن پر وړاندې په جګړې کې د ګډون لپاره دی او مسلمانان هم په جګړه کې د ګډون لپاره پرته له خپلې خوښې هیڅ چاره نهویني او په دې کې یې هیڅ ګټه هم نه شته. مګر د ځواکمن او زورور له خوا پر کمزوري امر شوی دی او هیڅ چاره نه لري.

ولې رومیان پر دې ټکي له یوې مخې ټینګ ولاړ دي چې مسلمانان ورسره په ټولو جګړو کې همسنګري واوسي، هماغسې چې پر ۱۹۹۰ زېږدیز کال یې پر عراق د برید پر مهال دغه کار وکړ او آیا پر افغانستان یې هم د برید پر مهال همدغسې کار وکړ؟

ځواب څرګند دی.... ځکه چې د زمکني برید په لومړۍ څپه کې یې دوی (مسلمانان) د سپر په توګه ځای پر ځای کړل چې زیاتره ځاني زیانونه له مسلمانانو پوره کړي او مسلمانانو هم دغه ځای ډک کړ.

د راتلونکو سناریوګانو او د جګړې د لمبو د څرنګوالي په اړه نه غواړم چې څه ووایم، ځکه چې زه یو پوه سیاستوال او سیاسي شنونکی نه یم. مګر په واشنګټن او نیویارک کې وروستني بریدونه له ټولو وړاندوینو او احتمالي شونتیاوو سره همغږي لري او د هر ډول تصور او احتمال بیان ستونزمن شو. کله- کله جګړې د لاملونو له مخې ژبغړاندې کېږي چې هیڅکله زموږ فکر ورته نه رسېږي. پر دې ټولو احتمالي شونتیاوو سربېره، د نړیوالې جګړې ((آرماګدون))

مسئله ډېره مهمه ده چې د ختيځ او لويديځ تر منځ پېښېږي او کېداى شي، ووايو چې د صليبي روم لښکرکشۍ منځني ختيځ او منځنۍ اسيا ته او پر افغانستان او عراق بريد د آرماګدون پيليزه او د هغه لومړنۍ لمبې دي.

## يوه مفهوم ته کتنه

يوه ډله څېړونکي پر دې باور دي چې پر عراق پر ۱۹۹۰ زېږديز کال د امريکا او متحدينو بريد يې هماغه سوله ده چې په نبوي حديث «ستصالحونکم الروم صلحاً آمنا فتغزون» کې يې يادونه راغلې ده؛ نو په دغه جګړه کې د عراق آزادېدل هماغه آرماګدون دی، خو اوس د مهدي په تمه ژوند کوو.

زه دغه انده (نظريه يا مفکوره) ډېره لېرې وينم- که هر څومره يې احتمال هم شتون ولري او واقعيت يې هم، هغه د لاندېنيو دليلونو په پام کې نيولو سره ردوم.

۱- يوه اسلامي هېواد او د هغه لښکر ته دښمن «عدو» نه ويل کېږي، هغه ته ياغي يا تېرى کوونکى او نورې بېلګې ويل کېداى شي؛ نو کېدلى نه شي چې دغه روايت د عراق د جګړې پر اوږو سپور کړو.

۲- دغه جګړه په آرماګدون (فلسطين) کې پېښه شوې نه ده.

۳- تر دې وروسته روميانو چل او خيانت کړی نه دی، هغسې چې په حديث کې راغلي دي. په داسې حال کې د دغه تر پېښېدو دا دی دولس کلونه تېر شوي دي.
نو له همدې امله پر عراق د متحدينو بريد آرماګدون نه دی او هغه څه چې په روايت کې راغلي دي چې ((فتغزون)) رامنځته شوي نه دي، خو کېدای شي ووېل شي چې يوه ساده سناريو ده، د هغه څه په پرتله چې په حقيقي آرماګدون کې پېښېږي او دا د هغه له لومړنيو پړاوونو څخه يو پړاو دی.
آيا يهوديان به په آرماګدون کې له منځه ولاړ شي؟ او بيت المقدس به کله فتح کېږي!!!؟
ډېره ستره برخه- تقريباً دوه سوه يم يهودي به په آرماګدون کې له منځه ولاړ شي، هغسې چې د زکريا په يون (سفر) کې راغلي دي. ۱۳ ۸۹
د حزقيال په يون ۱۲:۳۹ کې داسې راغلي دي: ((او اووه مياشتې به تېرې شي، تر دې چې د اسرائيلو کورنۍ به وتوانېږي چې خپل مړي ښخ کړي، وړاندې تر دې چې زمکه پاکه کړي
وروسته د هغوی په سيمه کې جګړه پېښېږي او هغوی هغه اور چې په خپل لاس يې روښانه او بل کړی وي، تر نورو وړاندې به په خپله په کې وسوزېږي.))

انجیل دا ډول ځرګندونه کوي، چې: ((او شیطاني اروا د نړۍ ټولې لښکرې په آرماګدون کې راټولوي.)) فکر نه کوم شیطاني او خبیثه اروا د یهودیانو له اروا پرته بله شتون ولري- پر هغوی دې د الله جل جلاله همېشنی لعنت وي.

نو له همدې امله وایم: ښایي خطرناک هجوم چې د امریکا کرامت یې په واشنګټن او نیویارک کې د برجونو تر ړنګولو وړاندې له خاورو سره یو ډول کړ، د یهودیانو-د هغې شیطاني اروا- له فکر او تدبیر څخه وي چې پر دې وتوانېږي چې د نړۍ لښکرې د جګړې لپاره راټولې کړي. اوس هم لښکرې د خوځېدو په حال کې دي او که چېرته جګړه پېښه شي، دوه سوه یم یهودي به په هغې کې وژل کېږي او د پاتې نورو وګړو وژل به د مهدي علیه السلام پر غاړه وي، تر دې چې بیت المقدس ته ننوځي.

د زمکې پر مخ د وروستني یهودي وژنه د عیسی علیه السلام تر راکېوتو وروسته سر ته رسېږي، هغه دجال وژني او د هغه یهودي پلیوني چې اویا زره کسان دي او پر تن یې ارت او پراخ کالي وي، ماته خوري. هغوی د تیږو او ونو تر شا پټېږي او تیږې او ونې به چیغې وهي- ته به وایې چې د هغوی بدبویي زغملی نه شي- ای مسلمانه! ای د الله جل جلاله بنده! راشه او دغه یهودي چې زما تر شا پټ دی، ویې وژنه.

## کله به دغه پیښه رامنځته شي!؟

**ښايي نږدې وي.**

شیخ سفر الحوالي زما په خپل کتاب «یوم الغضب» کې لیکي: «وروستني او ستونزمنه پوښتنه دا ده، چې کله به د غضب ورځ رارسېږي او الله جل جلاله به پلیت خلک له منځه وړي او په کومه ورځ به د بیت المقدس د اسارت زنځیرونه شلېږي!؟» هغه په ځنګزني (ضمني) ډول دغې پوښتنې ته ځواب ورکړی دی. څنګه چې دانیال د کرب او فرج تر منځ واټن، لکه څنګه چې وړاندې بیان شو- پېښه ځلوېښت کلونه ټاکلي دي، نو ما ولیدل چې د ناپاکو دولتونو په رامنځته کېدلو کې د دانیال ټاکنه پر ۱۹۲۷ زېږدیز کال کې پېښه یا رامنځته شوه.

د دغې محاسبې مطابق، د هغې د رامنځته کېدلو پای یا پیل به په ۱۹۲۷+ ۴۵= ۲۰۱۲ زېږدیز کال کې وي او دا هغه څه دي چې موږ ورته هیله من یو او البته په دقیقې ټاکنې سره یې نه وایو، مګر دا چې پېښې هغه تصدیق کړي.... (۱۲۲ مخ)

دا د هغه اند دی، خو زه لومړنی وینا ته غوراوی یا ترجیح ورکوم یانې ۲۰۱۲ زېږدیز کال د کار پای دی، نه د پای پیل. ځکه چې کار خورا ډېر نږدې دی (الله جل جلاله ښه پوهېږي.)، ځکه د اسرائیلو د دولت د نابودۍ پیل لکه څنګه چې وړاندې مو وویل، د مهدي علیه السلام او د هغه د ملګریو په لاس به وي او د پاتې پلیتیو له منځه

وړل به د الله جل جلاله د روح یا ساه عیسی علیه السلام په لاس بـه وي او له هغه سره به مؤمنان ملګري وي، کله چې دجال لـه اویا زرو یهودیانو سره وژني.
د زیاتي روښانتیا لپاره وایم: مهالنی (زماني) توپیر د ۲۰۱۲ زېږدیز کال کال په منځ کې چې د کار پای یا د پای پیل، هغه زمانه ده چې مهدي په کې ژوندی دی. که داسې وانګېرو چې ۲۰۱۲ زېږدیز کال د پای پیل دی، نو مهدي تر ۲۰۱۲ زېږدیز کال وړاندې به راڅرګند ېږي یانې له هغه څخه لس کلونه وړاندې او دغه شمېره لېږې وینم، ځکه آرماګدون چې مهدي تر هغه وړاندې راڅرګندېږي، ډېر نږدې دی.
خو که داسې وانګېرو چې دغه کال د کار پای دی، نو عیسی علیه السلام تر هغه وړاندې راکوزېږي، ځکه د کار پای د هغه په لاس کې دی او دا مشهوره ده چې مهدي علیه السلام لږ تر لږه اووه کلونه تر هغه وړاندې راڅرګندېږي، نو مهدي علیه السلام په همدې ورځو کې راڅرګندېږي او موږ دې برخې ته زیاته ترجیح ورکوو.

والله الموفق

## مهمه بيانيه

**په امريکا او اروپا کې پر عربو مسلمانانو يو غږ.**

هر څومره چې زر کېږي، خپلو هېوادونو او اصلي هستوګنځايونو ته ستانه شئ.

خپلو سيمو ته له توبې سره يو ځای راوکوچېږئ او د خپل خدای جل جلاله ثنا او صفت وايئ. تاسې هلته له ارامه او له اسانتياوو څخه ډک ژوند تېر کړی دی او نن ورځ وېره، ازار او په عذاب کېدل تاسې تهديدوي او سبا، د هغه ځا لپاره چې په هغو سيمو کې پر پاتې کېدلو ټينګار کوي، د وژل کېدو او نابودېدو پيغام له ځانه سره لري.

له وژل کېدو او نابودېدو خبر شئ.... او دا هغه څه دي چې حضرت محمد صلی الله عليه وسلم تاسې له هغه څخه وېرولي يئ او زه نن ورځ له دغه خبرداري سره هغه پيغام ستاسې غوږونو ته دروړسوم.

نعيم بن حماد، شيخ امام بخاري رحمه الله په خپل سند سره له عبدالله بن مسعود او هغه له حضرت محمد صلی الله عليه وسلم څخه روايت کوي، چې ويل يې: ((.... **و يثب الروم على ما بقى فى بلادهم من العرب فيقتلونهم حتى لا يبقى بارض الروم عربى ولا عربية ولا ولد عربى الاقتل**....))[1]

---

[1] کتاب الفتن، باب: الاعماق و فتح القسطنطيه، (۲۷۰ مخ)

((.... او روميان په خپلو سيمو کې پر پاتې عربو بريد کوي او هغوی وژني، لکه څنګه چې د روم په سيمه کې يو عربي سړی يا يوه عربۍ ښځه يا يو عربي بچی پاتې نه شو، مګر دا چې وژل کېږي.....))

د حضرت محمد صلی الله عليه وسلم په وينا کې ښه ځير شئ، چې وايي: ((يو عربي سړی يا يوه عربۍ ښځه يا يو عربي بچی)) او ويلي يې نه دي چې مسلمان سړی يا ښځه؛ بلکې ويلي يې دي چې عربي سړی يا ښځه، ځکه چې روميان عربي توکم (نژاد) تر خپلو بريدونو لاندې نيسي، که څه هم عرب مسيحي يا عيسوي وي او يا که څه هم د لمانځه پليونی (تابع) نه وي، پرته له ځنډه هغوی وژني او د حضرت محمد صلی الله عليه وسلم تعبير د نفی په شکل (لايبقی عربی) راغلی دی چې د ټولېزوالي (عموميت) افاده ورکوي. يانې هغه وګړي چې د هغوی په سيمو کې پاتې کېږي او خپلو سيمو ته نه ستنېږي، يو کس يې هم نه ژغورل کېږي.

نو په څرګنده د لويې جګړې پيل چې تر ((آرماګدون)) وروسته دی، هغه عربان چې د روم په سيمو (امريکا او اروپا) کې دي، په لوی زيان او خطر کې لوېږي او نن ورځ يې هم د سر په سترګو وليدل چې د امريکا تر مرګونې پېښو وروسته څه ورځې پرې راغلې.

((**فاعتبروا يا اولی الالباب**))

د مهدي په باره کې د ((د اسلامي امت مام او د مهدي د راڅرګندېدو نږدېوالی)) کتاب په دریم څپرکي کې مې خبرې کړي دي او دا نه احساسوم چې د هغه تکرار یا بیا راوړل یو اړین بحث وي. والحمد لله

په هغه څپرکي کې مې ویلي چې مهدي، د وروستني زماني د جګړو او پایلاتونو پر مهال د مسلمانانو لوی یا ستر خلیفه دی. د هغه راڅرګندېدل د ورځلوی د لویو نښو او کوچنیو نښو تر منځ یوه تړونکې کړۍ ده یانې د هغه تر راڅرګندېدو وروسته د ورځلوی لویې نښې چې د هغوی په راس کې د دجال راوتل- شپږ کاله د هغه (مهدي) تر راڅرګندېدو وروسته د هغه (دجال) راڅرګندېدل دي- څرګندېږي.

په صحیح حدیث کې راغلي دي، چې: ((**بين الملحمة و فتح القسطنطية ست سنوات و يخرج الدجال في السابعة.**)) [1]

((د لویې جګړې او د قسطنطنیې د فتحې تر منځ واټن شپږ کاله دی او پر اووم کال یې دجال راوځي.))

وړاندې مې هم یادونه وکړه، هغه روایتونه چې د مهدي په اړه راغلي دي، له لوړې مانوي درجې څخه برخمن دي یانې که چېرته یې څوک درواغ وګڼي، د فسق او تکذیب په دایره کې به ننوځي، نو د هغو

[1] - صحیح: له عبدالله بن بسر څخه د احمد، ابو داود، ابن ماجه او نعیم بن حماد روایت.

روایتونو له منلو او د هغوی د غوښتنو له پلي کولو پرته هیڅ چاره نه پاتې کېږي.
مهدي مسلمان ځوان دی چې د ځلوېښت کلنۍ په شاوخوا کې نږدې مام لري. هغه یو معمولي شخص دی چې الله جل جلاله ورته لارښوونه کوي او په یوه شپه کې یې واکونه او صلاحیتونه پوره کوي او هغه د امت د خیر او اصلاح- تر زوال وروسته یې د راپورته کولو او تر ذلیله کېدو وروسته یې د درنولو- لپاره هوډ کوي، الله جل جلاله یې په دې کار کې برلاسی کوي.
مهدي د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم له نسل او د فاطمې رضی الله عنها (د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم لور) د زوی حسن رضی الله عنه له اولادې څخه دی.
د هغه نوم به د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم له نامه او د پلار نوم به یې د هغه (صلی الله علیه وسلم) د پلار له نامه سره یو ډول وي؛ نو هغه (مهدي) ((محمد بن عبدالله)) دی. لکه څنګه چې مو وړاندې وویل، مهدي د آرماګدون تر نړیوالې جګړې وروسته یا ترې لږ وړاندې او یا به یې په منځ- منځ کې راڅرګند شي او راڅرګندېدنه به یې د سعودي د پاچا (ښایي ملک فهد وي) تر مړینې او یا به د واکمنۍ پر سر د هغه (ملک فهد) د ځایناستو تر منځ تر شخړو او لانجو وروسته وي.

د مهدي لپاره به په مکه مکرمه کې د کعبې تر څنګ بيعت اخيستل کېږي او د راڅرګند ېدو وروستنی غوڅه نښه يې په زمکه کې د بدمرغه لښکر خورېدل او نتوتل دي چې د مهدي او د هغه د ملګريو د له منځه وړلو لپاره لېږل کېږي، هغسې چې په متفق عليه حديثونو او د صحيحينو په روايتونو کې راغلي دي.

نو د کلب په جګړه کې د سفياني د لومړي لښکر تر ماتې وروسته د مهدي جګړې په ترتيب سره په لاندې ډول راوړم:

۱- جزيرة العرب او ګرد سره عربي هېوادونه به فتح شي.

۲- له پارس سره جګړه او ټولې زمکې يې فتح کول.

۳- د يهوديانو ماتې او د بيت المقدس فتح کول او دغه پېښنه به تر لويې جګړې وړاندې يا وروسته وي.

۴- په لويه جګړه کې د روميانو (اروپا او امريکا) ماتېدل.

۵- له خوز او کرمان (چين او روسيې) سره جګړه.

۶- له هند سره جهاد.... تر دې جګړې وروسته مې څه ليدلي او ليکلي نه دي او دا وروستنۍ جګړه ده چې مسلمانان يې د عيسی عليه السلام تر راکېوتو وړاندې هغه پای ته رسوي.

نعيم بن حماد له ابو هريره رضی الله عنه څخه روايت کوي چې رسول الله صلی الله عليه وسلم ويل: ((**ليغزون الهند لكم جيش يفتح الله**

**عليهم حتى ياتوا بملوكهم مغللين بالسلاسل يغفرالله ذنوبهم فينصرفون حين ينصرفون ابن مريم بالشام.»** [1]

«له تاسې څخه به يو لښکر له هند سره جګړه وکړي او الله جل جلاله به هغوی سرلوړي او برلاسي راوګرځوي، د هغه سيمې پاچاهان به يې پر زنځيرونو تړلي وي او له ځانه سره به يې راولي، الله جل جلاله د هغوی ګناهونه ببښي او کله چې بېرته راګرځي، نو ابن مريم عليه السلام د شام په سيمه کې ويني.»

- له لاتيک ترکيې (قسطنطنيې) سره جګړه کوي او هغه ځای پرته د وسلې له کارولو څخه د تکبير او لااله الاالله په ويلو سره فتح کوي؛

- وروسته له روم سره مخامختيا کوي او «واتيکان» فتح کوي.

کېدای شي عيسى عليه السلام په دې جګړه کې ملګری وي، څکه چې په دې جګړه کې ناتحريف شوي تورات او انجيل تر لاسه کېږي.

دا دي هغه څه چې زما په کتاب کې راوړل شوي وو. يو ټکی د پام وړ دی چې مهدي له ختيځ و لويديځ سره به جنګېږي، له هېوادونو سره به جګړه وکړي او ګردسره کمونستي، صليبي مسيحي، لاتيک امپراتوري او آن لاتيک اسلامي دوله هېوادونه تر لاسه کوي. هغوی

---

[1] - کتاب الفتن، باب: غزو الهند، ۲۵۲ مخ، بنايي مهدي دغه لښکر هند ته ولېږي او خپله د شام په سيمه کې پاتې شي، تر دې چې عيسى ابن مريم راکوز شي او هغوی د سهار لمونځ ورکوي. تر دې وروسته لښکر بريالى يا کامياب راستنيږي او عيسى ابن مريم ګوري چې راکوز شوی وي.

به سپین او زېړ توغونه په لاسونو کې نیولي وي چې پر هغوی به د الله جل جلاله نوم لیکل شوی وي او له توغونو هیڅ یو به یې ماته نه خوري چې د هغو پر مخ «البیعة لله» لیکل شوی وي.
په پای کې هم هغه ټکی چې تر دې وړاندې مې یادونه یې کړې نه ده، ورزیاتوم.

## د مهدي څېره او د مهدي د نوم اېښودلو لامل

مهدي، محمد بن عبدالله یو ځوان دی چې شاوخوا څلوېښت کاله مام لري، د غنمرنګي رنګ درلودونکی دی، پزه یې وتلې او په‌منځ کې یې لږ لوړوالی دی چې دغه ځانګړتیا یې د څېرې ښکلا جوړوي، د لوړ او ستر تندي درلودونکی دی، سترګې یې تورې دي، غاښونه یې لکه د تورې د پړک غوندې سپین دي، د ګڼو ښېګڼو درلودونکی دی او په څېره یا مخ کې یې یو خال دی چې خلک به ورته ښکلا (حسنه) وایي، ته به وایې چې څېره یې د ځلېدونکي او روښانه ستوري غوندې ده. منځنۍ ونې ته ورته د جګې ونې (قامت) درلودونکی دی او تنه یې لږه غوښنه لري (چاغ نه دی.)
په ژبه کې به لږ بندوالی لري یانې نیمژبی او ترتړی به وي. څنګه چې خبرې کول ورته سختېږي، کیڼ ورون په خپل ښي لاس وهي، نو هغه مهال به یې ژبه روانېږي. دا وو د هغو روایتونو او ښېرونو لنډیز

چې د هغه په باره کې راغلي وو او اوړتیا نه وینم چې نسخې یې د سرچینې او اخځ پر یادولو سره یادې کړم، ځکه لنډیز د مطلب د زر رسولو یوه ځانګړتیا ده.
خو دا چې هغه ته مهدي وایي، پر دې دلیل یې ورته وایي چې د یوه پټ او پوښلي کار پر لوري لارښوونه کوي یانې تورات او انجیل به په خپله آره (اصلي) بڼه پیدا او راوباسي.

## د مهدي د راڅرګندېدو د نړدېوالي نښې او له هغه سره د بیعت څرنګوالی

د مهدي د راڅرګندېدو حتمي نښنه په زمکه کې د هغه لښکر خوړېدل او ننوتل دي چې سفیاني شخص یې د مهدي او د ملګریو د سرکوبولو لپاره لېږي، البته نورې نښې هم راڅرګندېږي چې د مهدي د راڅرګندېدلو د نږدېوالي نښې یې ګڼلی شو. سربېره پر هغه څه چې موږ یې وړاندې د سعودي د پادشاه د مړینې او د هېواد د چارو د تر لاسه کولو لپاره د جګړې په اړه وغږېدو او د آرماګدون د نښتو یادونه هم وشوه، نورې نښې هم شتون لري چې د مهدي د راڅرګندېدو د نږدېوالي کیسه کوي.

**۱- له لويديځ څخه د توغونو راخوځېدل چې بولنه (قومانده) به يې د ګوډ سړي په لاس کې وي:**

نعيم له كعب څخه روايت كوي: ((**علامة خروج المهدى الوية تقبل من المغرب عليها رجل اعرج من كنده.**)) [1]

((د مهدي د راڅرګندېدو نښه هغه توغونه دي چې له لويديځ څخه راځي او د هغوی بولندوی [قوماندان] د كندې د سيمې يو ګوډ سړی دی.))

موږ د لويديځ توغونه هم وليدل چې د امريكايي او اروپايي ګډو ځواكونو پر اوږو وو او د هغوی ټولو بولندوی ګوډ ريچارډ مايرز ؤ.

**۲- د سرو زرو له غره څخه د فرات مخ ګرځونه او پر هغه د خلكو شخړې او وژنې:**

په صحيح بخاري او مسلم كې يو روايت دی چې: ((**يوشك الفرات ان يحر عن جبل من ذهب....**)) [2]

حافظ ابن حجر د دغه حديث په څېړنه كې يادونه كړې ده چې دغه كار د مهدي د راڅرګندېدو په وخت كې كېږي.

---

[1] - الفتن، باب: آخر من علامات المهدى فى خروجه، ۲۰۵ مخ

[2] - كتاب الفتن، بخاري، ۱۳ ټوک، ۸۱ مخ

د نړیوالې جګړې پر مهال دغه کار پېښېږي او د اټومي بمباریو په پایله کې به د فرات د اوبو دا مخ ګرځونه به د زر تر زره د خزانې د راویستلو لپاره وي یا دا چې دا مخ ګرځونه به د اوبو د تړلو له مخې کېږي، په هغو بندونو کې چې ترکیې یې جوړول پیل کړي دي. وروستنی بند چې ترکیې تړلی دی، د «ابلیسو» بند دی چې کولی شي د ټولو اوبو لوری بدل کړي او مخنیوی یې وکړي.

## ۳- د روژې په میاشت کې د نه اټکل وړ پېښې او په شوال، ذی القعده او ذی الحجه کې سخت پایلاتونه:

مهدي به په محرم میاشت کې راڅرګند شي او د روژې په میاشت کې به تر هغه وړاندې په اسمان کې څرګندې نښې او اریانوونکي کارونه راپیدا شي، وېروونکي او سخت غږ به پورته شي او ټول خلک به یې واوري. لکه لرونکی ستوری راخېژي او ټول اسمان روښانوي، کسوف او خسوف پېښېږي یانې لمر او سپوږمۍ به تندر ونیسي؛ که چېرته دغه پېښې په روژه کې رامنځته شي، په شوال کې جګړې پېښېږي او په ذی القعده کې د قبایلو خوځښت یا حرکت او په اسلامي ښارونو کې شخړې څرګندېږي. په ذی الحجه کې د حاجیانو جګړې او د حج په ټاپي (موسم) کې د ملتونو او قومونو وژنې پېښېږي، لکه څنګه چې د غټ اختر پر ورځ په «منی» کې د انسانانو وینه د عقبې جمرې (کاڼو ویشتلو) په وسیله روانېږي.

لکه څنګه چې دغه پېښې تر يوې او بلې وروسته په پر له پسې ډول پېښېږي، نو مهدي راڅرګندېږي او د محرم په مياشت کې د عاشورا پر ورځ ورته بيعت اخيستل کېږي. دلته د ځينو راوړل شويو نښېرونو يوه برخه په دې اړه راوړم.
نعيم بن حماد په خپل سند سره له رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه روايت کوي: ((**فى رمضان اية فى السماء كعمود ساطع و فى شوال البلاء و فى ذى القعدة الفناء و ذى الحجة ينتهب الحاج و المحرم ما المحرم.**))
((د روژې په مياشت کې يوه نښه د روښانه ستني په شکل راڅرګندېږي او په شوال کې شخړې او جګړې دي او په ذى القعده کې پوپنا کېدل دي او په ذى الحجه کې د حاجيانو بريد او چپاول رامنځته کېږي او محرم چې څه په کې ناروا او حرام دي.))
((**يكون صوت فى رمضان و معمة فى شوال و فى ذى القعده تجاذب القبائل و عامئذ ينتهب الحاج و تكون ملحمة عظيمة بمنى يكثر فيها القتلى و تسيل فيها الدماء و هم على جمرة العقبه.**))
((په روژه کې يو غږ کېږي او په شوال کې شخړې راڅرګندېږي. په ذى القعده کې قبايل راغونډېږي، په هغه کال حاجيان تر بريد لاندې راځي او په [منى [1]] کې يوه لويه جګړه پېښېږي، زيات وګړي په کې وژل کېږي او د عقبې جمرې تر څنګ زياتې وينې روانېږي.))

[1] - دا په عربستان کې يوه سيمه ده او د مني موسم ترې موخه نه ده. (ژباړن)

**«اذا كانت صيحة في رمضان فانه يكون معمة في شوال، قلنا: و ما الصيحة يا رسول الله؟ قال: هذه في النصف من رمضان ليلة جمعة فتكون هذه توقظ النائم و تقعد القائم و تخرج العوائق من خدورهن في ليلة جمعة في سنة كثيرة الزلازل، فاذا صليتم الفجر من يوم الجمعة فاذخلوا بيوتكم و اغلقوا ابوابكم و سدوا كواكم و دثروا انفسكم و سدوا اذانكم فاذا احسستم والصيحة فخروا لله سجدا و قولوا: سبحان القدوس، سبحان القدوس، ربنا القدوس، فانه من فعل ذلك نجا من لم يفعل ذلك هلك.»** [1]

«د روژې په میاشت کې کله چې یو وېروونکی غږ تر غوږونو رسېږي، وریسې د شوال په میاشت کې یوه شخړه او لانجه راپورته کېږي، مور وویل: [ای، د الله جل جلاله رسوله! دا د څه غږ دی؟] حضرت محمد صلی الله علیه وسلم وویل: [یو سخت ټکان د روژې د میاشتې د نیمایي د جمعې په شپه کې راپیدا کېږي چې خوبوړی انسان راویښوي، ولاړ انسان کښنوي او پرده لرونکې [محجبه] ښځې له پردو څخه- د جمعې په شپه په هغه کال چې زیاتې زلزلې به کېږي- راوباسي او بې پردې کېږي. کله چې د جمعې د ورځې د سهار لمونځ مو وکړ، خپلو کورونو ته ننوځئ او ورونه له دننه څخه وتړئ او کړکۍ هم بندې کړئ؛ ځان په څه کې ونغاړئ او غوږونه مو بند

---

[1] - پورتني حديثونه نعيم بن حماد، شيخ امام بخاري په «الفتن» کتاب کې راوړي او د ۲۲۵، ۲۳۰، ۲۳۵ شمېرو په ترتيب سره دي.

کړئ، کله چې مو غږ واورېده، په سجده پرېوځئ او ووایې: [سبحان القدوس، سبحان القدوس، ربنا القدوس.] نو هر چا چې دغه کار وکړ، وبه ژغورل شي او چا چې داسې ونکړل، بوپنا او هلاک به شي.))

وروستنی آثر له عبدالله بن مسعود رضی الله عنه څخه روایت موږ ته دا رازده کوي چې د دغه وېروونکي غږ د اورېدو پر مهال څه وکړو. ستاسې په اند د دغه ستر غږ آر لامل څه کېدلای شي؟ آیا یوه اټومي چاودنه ده؟ یا له زمکې سره د یوې سیارې ټکر دی؟ یا کوم بل څیز دی؟

محمد بن علي روایت کوي چې: ((**ان لمهدینا ایتین لم یکونا من خلق الله السموات و الارض، ینکسف القمر لاول لیلة من رمضان و تنکسف الشمس فی النصف منه و لم یکونا من خلق الله اسماوات و الارض.**))

((مهدي دوې نښې لري چې د زمکې او اسمانونو له پیدا ېښت راهیسې موندل شوي نه دي، یوه دا چې، د روژې د مبارکې میاشتې په لومړۍ شپه سپوږمۍ تندر نیسي او بله دا چې، د روژې د میاشتې په نیمایي کې لمر تندر نیسي او دغه دوې نښې د زمکې او اسمانونو د پیدا ېښت له مهاله رامنځته شوي نه دي.))

## د مهدي لپاره څنګه بیعت اخیستل کېږي؟

مهدي یو ښه چارې انسان دی او د ځان لپاره مشري نه غواړي یانې نه یې خوښوي او د ریاست او مشرتوب له منلو څخه لېرېوالی غوره کوي او پر خدایږو، چې دغه خوی (د مقام او پرتم مینه) وروستني څیز دی چې د ښه چارو انسانانو له زړونو څخه الوځي، ځکه چې ځای ځایګی یا مقام د کښښ او جاذبې لرونکی دی. خو مهدي ترې ځان ژغوري او آن هغه ناخوښی څیز هم ګڼي. مګر الله جل جلاله په یوه شپه کې ورته ټول واکونه او صلاحیتونه وربښي او دې ته یې اړ کوي چې یوه ستره چاره یا د بیعت اخیستلو لپاره چې ټول امت ورته په تمه دی، ومني. سختې او پر له پسې جګړې پېښېږي او مهدي د دې رښته (حق) لري چې د امامت او مشرۍ پېټی پر اوږو بار کړي. نو سربېره پر دې چې خلافت مني، جګړې پیلېږي او د ده د خلافت په موده کې چې څو کلونه دي، تقریباً لس جګړې پېښېږي یانې د هغه د خلافت موده په جګړو کې تېرېږي او هیڅ د ارامتیا او استراحت وخت نه مومي. لکه وړاندې مو وویل چې له هغه سره بیعت د محرم په میاشت کې تر زیاتو جګړو او پایلاتونو وروسته وي چې په روژې او نورو میاشتو کې رامنځته شوي وي. د بیعت بڼه داسې ده چې د عالمانو یوه زیات شمېر ډله د هغه په لټه کې کېږي او تر زیاتې پلټنې او څارنې وروسته هغه د حج په مراسمو کې د کعبې تر څنګ پیدا کوي. له هغه غوښتنه کوي چې کېني، تر څو له هغه سره خلک

بيعت وکړي، مګر هغه يې نه منې ياني ترې تښته کوي او د مدينې منورې پر لوري خوځېږي. هلته بيا له هغه څخه د بيعت غوښتنه کېږي، دا ځل د مکې مکرمې پر لوري تېښته کوي، بيا يې د کعبې تر څنګ پيدا کوي او دا وار پرې سخت ټينګار کوي، تر دې چې بيعت مني. نو د هغه وخت عالمان د هغه هغو ځانګړنو او صفتونو ته په پام سره چې محمد صلى الله عليه وسلم يې په اړه ويلي دي، پېژني او مهدي د رکن (حجرالاسود) او مقام تر منځ پرته له ناستي هيڅ چاره نهويني او په هغه وخت کې خپل لاس د بيعت سترې چارې ته نه وراوږدوي.

نعيم بن حماد دا ډول روايت کوي: ((**اذا انقطعت التجارات والطرق، و كثرت الفتن، خرج سبعة رجال علماء من افق شتى على غير ميعاد، يبايع لكل رجل منهم ثلاثماة و بضعة عشر رجلا حتى يجمعوا بمكة فيلتقى السبعة فيقول بعضهم لبعض: ما جاء بكم؟ فيقولون: جئنا فى طلب هذا الرجل الذى ينبغى ان تهدا على يديه هذه الفتن، و تفتح له القسطنطنية، قد عرفناه باسمه و اسم ابيه و امه و حليته، فيتفق السبعة على ذلك فيطلبونه فيصيبونه بمكة، فيقولون له: انت فلان بن فلان؟ فيقول: بل انا رجل من الانصار، حتى يفلت منهم فيصفونه لاهل الخبرة و المعرفة به فيقال: هو صاحبكم الذى تطلبونه و قد لحق بالمدينة فيطلبونه بالمدينة فيخالفهم الى مكة فيطلبونه بمكة فيصيبونه فيقولون: انت فلان بن**

**فلان و امک فلانة و فیک ایة کذا و کذا، و قد افلت مناصرة، فمد یدک نبایعک فیقول: لست بصاحبکم انا فلان بن فلان الانصاری، حتی یفلت منهم فیطلبونه بالمدینة فیخالفهم الی مکة فیصیبونه بمکة عندالرکن (الحجر الاسود). فیقولون: ائمنا علیک و دمائنا فی عنقک ان لم تمد یدک نبایعک، هذا عسکر السفیانی قد توجه فی طلبنا، فیجلس بین الرکن و المقام، فیمد یده فیبایع له و یلقی الله محبته فی صدور الناس فیسیر مع قوم اسد بالنهار رهبان.))**

**و فی روایة اخری: ((.... فیبایعه مثل عدة اهل بدر [ثلاثماة و بضعة عشر رجلا].))** [1]

((کله چې سوداګرې له ښکلا او ځلا لوېږي او لارې ناامنه کېږي او پایلاټونه ډېرېږي، له بېلابېلو سیمو څخه اووه عالمان پرته له پخوانۍ همغږۍ له یو بل سره د مکې مکرمې پر لور وځي؛ له هر یوه سره درې سوه او څو کسان بیعت کوي. تر دې چې دغه اووه کسان له یو بل سره مخ کېږي. یوه برخه بلې برخې ته وایي: [څه شي تاسې دلته راوستئ؟] وبه وایي: [موږ د هغه چا په لټه کې یو چې د دې ورتیا لري، دغه پایلاټونه د هغه په لاس له منځه یوړل شي او قسطنطنیه د هغه په وسیله فتح شي، موږ هغه په نامه، د پلار په نامه، د مور په نامه او په ځانګړتیاوو سره یې پېژنو.] ټول اووه کسان پر دې مسئلې سره یو کېږي او لټون پیل کوي، هغه په مکه مکرمه

---

[1] - الفتن، باب: اجتماع الناس بمکة و بیعتهم للمهدی، ۲۱۴ مخ

کې پيدا کوي. هغه ته وايي: [تاسې پلانی د پلاني زوی ياستئ؟] وبه وايي: [هو، زه له انصارو څخه يم.] تر دې چې له هغوی څخه ځان ژغوري، ځانګړنې او صفتونه ورته بيانوي، وايي: [دا هماغه دی چې تاسې يې لټون کوئ او هغه مدينې منورې ته لاړ دی.] د هغه په لټه کې مدينې منورې ته رهي کېږي، خو مدينې ته د هغوی تر رسېدلو وړاندې هغه مکې مکرمې ته راګرځي. تر بيا لټون وروسته هغه په مکه مکرمه کې پيدا کوي، وايي: [آيا تاسې پلانی د پلاني زوی نه ياست؟، مور دې پلانۍ د پلاني لور ده او ستا په تن کې دغه نښې موندل کېږي او يو وار زموږ له لاسه وتی يانې تښتېدلی وې، نو لاس دې رااوږد کړه چې موږ له تاسې سره بيعت وکړو.] هغه وايي: [زه ستاسې د نظر وړ شخص نه يم، زه پلانی د انصاري زوی يم.] او په همدې ترتيب سره د هغوی له لاسه ځان ژغوري. بيا مدينې منورې ته د هغه په لټه پسې خوځېږي، خو هغه بيا مکې ته راستنېږي او دا ځل يې د رکن [حجر الاسود] تر څنګ پيدا کوي او وايي: [زموږ ګناه به ستا پر اوږو بار وي او زموږ خون به ستا پر غاړه وي، که چېرته لاس مو د بيعت لپاره پورته نکړئ، دغه سفياني لښکر زموږ په لټه کې دی.] هغه وخت د رکن او مقام تر منځ کېني او خپل لاس اوږدوي او بيعت اخيستل کېږي او الله جل جلاله د خلکو په سينه کې د هغه مينه کېنوي. هغه له هغه قوم سره چې د ورځې زمري او د شپې راهبان دي، خوځېږي.))

په یوه بل روایت کې راغلي دي: ((.... له هغه سره د اهل بدر په اندازه یوه ډله بیعت کوي [دري سوه او دیارلس].))
ښايي دغه روایت له وړاندېني روایت څخه چې په هغه کې له هر کس سره دري سوه او څو کسه بیعت کوي، سم وي او دغه اختلاف د روایت د راوړلو د ډېروالي له مخې دی (څکه نعیم، حاکم او طبراني په منځني ډول له ام سلمه څخه روایت کړی دی.) یانې د عالمانو غټه اووه کسیزه ډله چې مهدي پېژني او په تمه یې وي، له هغه سره بیعت کوي او د ټولو شمېره د اهل بدر یانې د دري سوه دیارلس کسو اندازې ته ورسېږي.
په بل روایت کې راغلي دي، چې: ((... **فیاتونه و هو ملصق وجهه الی الکعبة یبکی، قال عبدالله بن عمرو روای الحدیث: کانی انظر الی وموعه.))** و **فی روایة**: ((**ترعد فرائصه.**))
((... کله چې هغه راځي، هغه به خپل مخ په کعبه پورې ننښلولی وي او ژړا به کوي. د حدیث روایت کوونکی عبدالله بن عمرو وايي: [ته به وایې چې زه یې اوښکې وینم.)) او په یوه بل روایت کې راغلي دي، چې: ((اوږې به یې [د ژړا له سختۍ څخه] ټکان خوري یانې لړزېږي به.))
هغه به د مسلمانانو پر کمزورې اوتا او په تېره هغه پایلاتونه چې پر هغوی راغلي دي، ژړا به کوي. هغه وینې چې په عقبې جمرې کې تویېږي، ذهن به یې ارام ته نه پرېږدي. لولنګره او سرسام به شي او نه

به پوهېږي چې څه وکړي؛ نو په سخته ژړا کې ورکېږي او سترګې یې په اوښکو کې ډوبېږي او په سینه کې بار غمونه د اوښکو پر باران مینځي، اوږې یې له سخت خپګان او ژړا څخه په خوځېدو راځي، خو په همدې اوتا کې یې زړه له الله جل جلاله سره تړلی وي.
د یو ډول کالیو (فرجي) په تمه شپې شمېري او د همدې لپاره ځان په کعبه پورې نښلوي او د کعبې پردې نیسي او په اوږدې ژړا سره وخت تېروي، ته به وایې د هغه د ژړا فریاد سرود شوی دی: ((ای ربه! ستا د کور پردو له ما څخه ایمان او امن واخیستل او ستا غوسه ده او زه ورته د پناه غوښتونکي په توګه راغلی یم او ځان مې پرې نښلولی دی.))
مګر ولې په لومړي سر کې مهدي د بیعت له قبلولو څخه، له هغو عالمانو سره چې ټول پرې ټینګار کوي، ځان ژغوري او د هغوی له لاسه تېښته کوي او ګوښه ناستی او ارام غوره کوي؟
ځواب: مسئله ډېره سخته او تر هغه څه خطرناکه ده چې یو انسان وکولی شي، پاره یې پر غاړه واخلي، په تېره د الله جل جلاله لارښوونه ورته کېږي او په یوه شپه کې یې پاره پر غاړه وراچوي چې تر دې وړاندې یې دغسې پاره پر اوږو بار شوې نه وي. په همدې دلیل بهانه او عذر وړاندې کوي او هر کله چې له هغه څه سره مخ کېږي، په یوې بهانې سره د خلکو له لاسه ځان ژغوري او تېښته کوي. بیا یې الله جل جلاله راپیدا کوي، نیمګړتیاوې یې لېرې کوي

او له شپو څخه په یوه شپه کې چې تېښته به کوي، نیمګړتیاوې به یې ورسموي او سمون به په کې راولي. تر دې وروسته به یې زړه هوډمن یا ثابت ګرځوي او د خپلې رڼا په وسیله به یې زړه روښان او منور کړي. څېره به یې دومره نوراني شي، تــه به وایې چې ستوری روښانه کېږي. څوک کولی نه شي د هغه له چورلیځ (مدار) څخه ووځي او د لمر غوندې ګرځي چې د خلکو ډلې خپل لوري تــه راکشوي او هغوی پر خپل چورلیځ څرخوي.

## د مهدي خطبه

همدارنګه نعیم روایت کوي چې مهدي په کعبه کې (د کعبې تر څنګ) د ماسخوتن د لمانځه پر مهال راڅرګند پرېږي، د ماسخوتن د لمانځه تر کولو وروسته په جګه چیغه غږ کوي او د الله جل جلاله تر ستاینې او حمد وروسته وایي: ((**اذکرکم الله ایها الناس و مقامکم بین یدی ربکم فقد اتخذ الحجة و بعث الانبیاء و انزل الکتاب و امرکم الا تشرکوا به شیاً و ان تحافظوا علی طاعته و طاعة رسوله صلی الله علیه وسلم و ان تحیوا ما احیا القران و ان تمیتوا ما امات، و تکونوا اعوانا علی الهدی و وزرا علی التقوی فان الدنیا قد دنا فناؤها و زوالها و اذنت بالوداع، فانی ادعوکم الی الله و الی رسوله و العمل بکتابه و اماتة الباطل و احیاء السنة.**))

«اى خلکو! تاسې د الله جل جلاله ياد او هغه ورځ چې د رب پر وړاندې به سويتيا ورکوئ [حاضرېږئ]، دريادوم. هغه، هماغه لاربنوونه او دليل سر ته ورسول، پيغمبران يې راولېږل، کتاب يې رانازل کړ او تاسې ته يې دا امر وکړ چې له هغه سره هيڅ څيز مه شريکوئ او د هغه او د هغه د پيغمبرانو پلیوني اوسئ او هغه څه راژوندي کړئ چې قرآن ژوندي کړي دي او هغه څه له منځه يوسئ چې قرآن له منځه وړي دي او په لاربنوونه کې له يو بل سره ملګرتيا او ياري کوئ او په پرهېزګارۍ او تقوا کې د يو بل ياوران اوسئ. نو د نړۍ زوال او نابودېدل رانږدې شوي دي او اجازې خداى پاماني تر لاسه کړې ده. نو زه تاسې د الله جل جلاله او د هغه د پيغمبر او د هغه د کتاب د عمل پر لوري او د باطلو د له منځه وړلو او د سنتو د ژوندي کولو پر لوري رابولم.»

همدغه ځاى دى چې سربېره پر اوو عالمانو چې وړاندې يې له هغه سره بيعت کړى وي، درې سوه او څو نور کسان له هغه سره بيعت کوي، څنګه چې د عراق سفياني لښکرکشي کوي او لښکر يې په زمکه کې ننوځي. د عراق وګړي، د شام ابدال [1] او د مصر نجيب او شريف وګړي د هغه د راڅرګندېدو پر رښتيايني يا تصديق د حتمي نښو په ليدلو سره د بيعت لپاره سوب کېږي (حاضرېږي) او د

---

[1]- د دهخدا په ويينوود کې د ابدال لپاره د اووه کسه، نېک خلک، د شام وګړي، خداى جل جلاله پېژندونکي (عارفان) او نورې ماناوې راغلي دي.

روايتونو مطابق، د هغه لپاره لږ تر لږه چې کم يې دولس زره کسه او زياته اندازه يې پينځلس زرو ته رسېږي، راټولېږي، همغه مهال له دغه لښکر سره راوځي او د دښمنانو پر زړونو يې وېره او رعب پرېوځي. هر کله چې له دښمن سره مخامخ کېږي، هغه دښمن يې د الله جل جلاله په اجازې او مرستې سره ماتې خوري او شعار به يې «امِتْ، امِتْ» «ياني مړ شه، مړ شه» وي.

## د ۱۴۰۰ لېږديز کال د محرم پېښه او د مهدي راڅرګندېدل

د مکې د حرم د ولکې پېښه په ۱۴۰۰ لېږديز کال کې له يو لړ اريانوونکيو پېښو څخه ګڼل کېږي چې په نبوي حديثونو کې ورته نغوته شوې ده او د واقعي مهدي له راڅرګندېدلو سره ټينګ تړاو لري.

په دغه پېښه کې يوه وسله واله ډله د محمد بن عبدالله قحطاني نومي شخص تر بولنې لاندې د ۱۴۰۰ لېږديز کال د محرم د مياشتې په لومړنيو ورځو کې مسجد الحرام ته ننوځي، د سهار د لمانځه پر مهال د حرم ورونه تړي او وروسته تر دې چې لمونځ کېږي، يو له هغوی څخه غږ کوي: «الله اکبر... مهدي راڅرګند شو.» او د جومات د لرغږو (لوډسپيکرونو) پر مټ پر خبرو پيل کوي، مدعي کېږي چې موعود مهدي چې روايتونه د هغه په اړه راغلي دي، همدا دی او څو ځلې يې په خوب کې ليدلی دی او اټکل يې پر

باور بدل شوی چې مهدي همدا دی، نه بل څوک. وروسته د رکن او مقام تر منځ له هغه سره بيعت کوي.
تر څه مودې وروسته په مسجد الحرام کې جګړه پېښېږي او د جنګېدونکيو الوتکو غوږ شلوونکي غړونه او مرمۍ ويشتنې د وسله والو خلکو پر لوري چې د جومات په منارو کې يې پناه اخيستې وي، پيلېږي. تر څو ورځو پورې دغه جګړه او سخته ننښته ادامه پيدا کوي او د امن سيمه په لړځېدو راولي، تر دې چې د نوموړې ډلې مشر وژل کېږي او د هغه وګړي تسليمېږي. په دې ترتيب، هغه پايلات چې د دين تر توغ لاندې راپورته شوی وي، له منځه وړل کېږي. تېری کوونکي د نبوي سنتو او ديني مسئلو د حقيقت پر وړاندې د ناپوهۍ له مخې د سختو تېروتنو ښکار ګرځېدلي وي. له هغو تېروتنو کې چې دوی يې سر ته رسوي، دا دي چې وسله حرم ته ننباسي چې الله جل جلاله د هغه په اړه فرمايلي دي:
((فِيهِ ءَايَٰتٌۢ بَيِّنَٰتٌ مَّقَامُ إِبْرَٰهِيمَ ۖ وَمَن دَخَلَهُۥ كَانَ ءَامِنًا ۗ ﴿٩٧﴾))
[آل عمران: ۹۷ آيت]
نو په حرم کې هر ډول وېره او رعب راپورته کول له لويو او سختو ګناهونو څخه ګڼل کېږي، دغه ټکی هم د پام وړ دی چې د واقعي مهدي راڅرګندېدل او له هغه سره بيعت د شتو پايلاتونو د له منځه وړلو لپاره وي، نه دا چې خوبوړي او چوپ پايلاتونه راپورته کړي. په

روايتونو کې راغلي دي چې په هغه کال چې مهدي په کې راڅرګندېږي: ((**يحجون معاً و يعرفون معاً على غير امام.**))

**[رواه الحاكم فى المستدرك و نعيم بن حماد]**

((خلک به له يو بل سره يو ځای حج کوي او يو ځای به سره عرفې ته ځي، خو امام به نه لري.))

په حج او په عرفه کې د خلکو ودرېدل به په همغږي او متحد ډول سره وي، خو چې د سعودي پادشاه مړ شوی وي، په دې اوتا کې به بې امامه وي او هر کله چې خلک بې امامه وي، شيطان هغوی لکه د سپيانو غوندې راغونډوي او جګړه او وينې تويېدل پيلېږي. هغه مهال عالمان د مهدي لپاره بيعت اخلي، ځکه هغوی پوهېږي چې د هغه راوتل او د هغه د خلافت اعلان د شرعيت له مخې جايز دي، ځکه چې خلک امام او خليفه نه لري او د واک پر سر د جګړې له امله خلک په پايلاتونو کې ژوند پر مخ وړي. خو کله چې خلک يو امام (حاکم يا پادشاه) ولري، نو د هغه پر وړاندې پاڅون او له بل خليفه سره بيعت کول جايز نه دي، په دې آړ (شرط) چې هغه (د وخت حاکم) مسلمان وي او لمونځ کوونکی واوسي، که څه هم چې مستبد او ظالم وي.

پر دې سربېره واقعي مهدي د محرم په مياشت کې راڅرګندېږي چې ترې وړاندې د روژې، شوال، ذی القعدې او ذی الحجې په مياشتو کې پايلاتونه رامنځته شوي وي، په داسې حال کې چې د

«قحطاني» تر راڅرګندېدو وړاندې په حرم کې داسې پايلاتونه رامنځته شوي نه وي. نو د دغې چارې ليدل، د قحطاني د پېژندلو مسئله او کعبې ته د هغه پناه وړل، د حضرت محمد صلی الله عليه وسلم د روايتونو په يوه روايت کې وينو چې د دغې چارې له واقعيت څخه پرده پورته کوي. که چېرته قحطاني او په هغه پورې تړلې خلک پر قرآني آيتونو او روايتونو باندې پوهېدلای، پر سترګو به يې ناپوهۍ پرده نه غوړوله، په تېره، که چېرته دغه روايت چې اوس يې يادونه کوو، خبر وای، هيڅکله به يې د مرګ په خوله کې ځان ورکاوه او د حرم ارام اوسېدونکي به يې په وېرې او خوف کې نه راوستل.

نعيم بن حماد د «الفتن» د جليل يون، باب: د سفياني لښکر خپرېدل يا ښکته کېدل په (۲۰۲ مخ) کې په خپل سند سره له مجاهد او بتيع څخه روايت کوي: «**سيعوذ بمكة عائذ، فيقتل، ثم يمكث الناس برهة من دهرهم، ثم يعوذ عائذ اخر، فان ادركته فلا تغزونه فانه جيش الخسف**.»

«پناه لټوونکي به کعبې ته پناه وړي، وروسته وژل کېږي، وروسته خلک يوه شېبه ځنډ کوي، تر دې چې يو بل پناه لټوونکی به پناه يوسي. که چېرته ورسره مخ شوئ، جګړه ورسره ونکړئ، ځکه (له هغه سره جنګيالي) يو لښکر دی چې په زمکه کې ننوځي.»

دغه ننبېر د پوزتني تکی څرګندوونکی دی چې هغه شخص چې کعبې ته پناه وړي او خلک چې د هغه په اړه اختلاف کوي، وژل کېږي او وروسته څه موده تېرېږي او حقيقي مهدي راڅرګندېږي، په دې توپير سره چې هغه يو سپېڅلی انسان او د الله جل جلاله لوري ورسره مرسته شوې وي او هغه لښکر چې د هغه پر لوري د تللو نيت کوي، د زمکې په زړه کې به ښکته شي.

د «برهة من الدهر» ويی يا کليمه د اوږدې مودې د بيان لپاره کارول کېږي او د «هنية يا هنيهة» ويی د لږې مودې لپاره کارول کېږي، لکه له وييښودونو (قاموسونو) څخه راوځي. اوس وانګېرئ چې څومره موده له دغه برهه يانې بيت الله ته د لومړي پناه لټوونکي يا قحطاني له وژلو څخه او د مهدي راڅرګندېدل يا دويم پناه لټوونکی چې بېګناه دی، تېره شوې ده.

تر اوسه ۲۲ لېږديز سپوږميز کلونه (او تقريباً ۲۱ زېږديز کلونه) له دغې پېښې څخه تېرېږي، پر الله جل جلاله سوګند چې څو کلونه د برهه له تېرېدلو څخه پاتې شوي نه دي او دغه برهه د پای د ټکي په اوتا کې ده.

دغه وروستنی وينا ده، د هغو مسئلو يادونه مې وکړه چې د «د اسلامي امت مام» په کتاب کې مې د هغو يادونه کړې نه وه او د الله جل جلاله په مرسته د حقيقت پلټونکيو ته بسنه او کفايت کوم. که

چېرته دغه مسئلې په هغه کتاب کې ځای پر ځای کړم. د دغې سکالو په اړه بلې سرچينې ته د مراجعې اړتيا نه پيدا کېږي.

**و الحمد الله العزيز العلام**

زياتره خلک او آن د علم خاوندان نه يواځې د وروستنۍ زمانې د پېښنو په ترتيب کې تېروځي، بلکې هيڅ ورسره اشنايي نه لري. نو ځينې پر دې ګروهمن دي چې د مسلمانانو په لاس د هغو يهوديانو وژنه چې د تېرو او ونو تر شا پټېږي، د مهدي تر راڅرګندېدلو به وراندې وي. يوه بله ډله پر دې باوري ده چې د لويديځ له لوري د لمر راختل، د ورځلوی له لومړنيو نښو څخه ده او د دجال راوتل لومړنۍ نښه نه ده.

د سترو دعوتګرو يوې ډلې په يوه غونډه کې په ډاګه ويلي وو چې د قسطنطنيې فتح د محمد فاتح په لاس پای ته رسېدلې ده او بل ځل نه فتح کېږي او د روم (د ايتاليا پلازمېنه) د فتحې په هکله يې ويل: دغه فتح به يوه فرهنګي فتح وي، نه نظامي فتح.

بله ډله د مهدي له راڅرګندېدلو څخه نټه کوي او درېيمه او څلورمه وايي چې دجال راڅرګند شوی دی او له ټلويزيون پرته بل څيز کېدلی نه شي او بله ډله وايي چې د برموډا په ټاپو کې دی چې الوتکې په مقناطيسي ډګر کې د ځان لوري ته راکشوي او له ځانه نورې نښې پرېږدي او نورې مسئلې هم شته چې خلکو او آن د علم خاوندانو هغه يو له بله سره ګډې کړي دي او په پټو سترګو هغه بيانوي. ښايي وويل شي چې يواځې ښه نيت او هوډ درلودل بسنه نه کوي.

اوس زه په دغه ځای کې په الهي قوت و قدرت د وروستنۍ زمانې پېښې ثابتوم او په څو پاڼو کې به د پېښو ترتيب او د هغوی زماني پر له غښتيا (تسلسل) څرګند کړم.
ښايي الله جل جلاله د دغه بيان په وسيله مونږ ته ګټه راورسوي، هغه مهال چې پايلاتونه په مسلسله توګه راڅرګند ېږي، پېښې په چټکتيا سره مونږ وينو او تورې ستونزې هم راڅرګندېږي او پراخې سينې به د تنګوالي احساس کوي. هغه مهال د مصيبت ليدونکي ته به د دغه بيان په سيله لاره روښانه شي، د ژغورنې لاره به ورته ښيي او د هغه د ژغورنې به لامل کېږي او که هغه مونږ ته په دعا کولو کې بخل کړی نه وي، ښايي الله جل جلاله ته زمونږ د نږدېوالي لامل وګرځي. د دې تر څنګ زه هم په خپل نوبت له الله جل جلاله څخه د سلامتۍ او له ټولو پټو او څرګندو پايلاتونو څخه د ژغورنې غوښتونکی يم.
په دغه برخه کې د نړۍ د مام وروستنۍ پېښې له دقيق زماني ترتيب او له يو لړ اړينو تشريحګانو سره ستاسې لوستونکيو په چوپړ کې وړاندې کوم.

## لومړنۍ پېښه: له کويټ سره د عراق جګړه او د هغې لاملونه

دغه جګړه پر ۱۹۹۰ زېږديز کال د کويټ پر نفتو د صدام د وړسترګی يا وږسولۍ او حرص له امله رامنځته شوه. کويټيان د

روم (صلیبي مسیحي لویدیځ) پر لور وتښتېدل او هغوی یې د مسلمانانو پر لوري راوستل (پټ پایلات)؛ هغوی عراق تر برید لاندې ونیو او د دریمې نړیوالې جګړې په لومړني پړاو کې لومړنۍ جګړې (کورنۍ جګړې) د عربو په زمکو کې متمرکزې شولې.

## دویمه پېښه: د عراق محاصره

یوه اقتصادي او سیاسي محاصره ده چې دغه هېواد یې د عراقي نظام او ملت لپاره یو لوی زندان جوړ کړی دی او پر عراق د برید له شېبې څخه پیل او تر دا مهاله دوام لري او د هغې د پای هیڅ نښه نه تر سترګو کېږي.

دا هماغه (عجمي) محاصره ده- له عربو پرته ټولو ملتونو ته عجم ویل کېږي- او دا مهال ټول عجم ملتونه په دغې جګړې کې سره یو (متحد) شوي دي.

## دریمه پېښه: د شام محاصره

له اقصی سره یو ځای د فلسطین محاصره د ۲۰۰۰ زېږدیز کال په سپتمبر کې پیل شوې ده او د شام زمکې له فلسطین، سوریې، اردن او لبنان څخه عبارت دي. باید په تمه پاتې شئ چې څه وخت به د سوریې او لبنان ((رومي محاصره)) پیلېږي. البته امریکا د دغې چارې د چمتو کولو په حال کې ده او پر همدې دلیل دغه دوه

هېوادونـه يـې د ترهګريـزو هېوادونـو پـه سـرليک او د ترهګـرو د پنډغالو په نوملړ (لېست) کې نيولي دي او همدغـه رومـي محاصـره ده؛ ځکـه امريکـا پـرې اقـدام کـړی او مرکـزي او نظـامي ډګـر يـې اسرائيل دي. لکه څنګه چې رسول الله صلی الله عليه وسلم ويلي دي چې د روم لـه لـوري يـوه محاصـره ده. نـاويلي پـاتې نـه شـي چـې د فلسطين دغـه محاصـره او د مـسلمانانو د دغـې ډلـې جګړه د بيت المقـدس د دروازو پـه مـخ او پـه شـاوخوا کـې بـه د مهـدي تـر راڅرګندېدلو پورې دوام مومي.

**الهنيه يا الهنيهه (شېبه)**

په الفتن کې کې له صحيح مسلم څخه يو صحيح حديث دی چې هغه مې د دې کتـاب پـه لـومړنی برخـه کـې راوړی دی او پـه هغـه کـې حضرت محمد صلی الله عليه وسلم موږ د عـراق لـه محاصـرې او تـر څه ځنډ شېبې چوپوالي وروسته د مهدي له راڅرګندېدلو څخه خبر کړي وو.

(هنيه) يا (هنيهه) د وخت لنډې مودې ته ويل کېږي او (برهـه) د وخت اوږدې مـودې تـه ويـل کېـږي، (هنيـه) پـر يوشـمېريزې يـا يـو رقمـي شمېرې دلالت کوي او (برهه) پر لږ و زيات لسو آن شلو، دېرشو او.... دلالت کوي. موږ هم دا مهـال پـه همـدې (هنيـه) کـې ژونـد کـوو چـې د شام (فلسطين) له محاصرې څخه نيولې او د مهدي پر راڅرګندېدلو به پای ته ورسېږي.

## څلورمه پېښه: د تورو توغونو د درلودونکيو (طالبانو) راڅرګندېدل

له تورو توغونو سره د ((طالبانو)) خوځښت، مشکي پټکيو، سپينو کاليو او له هغه ډول څېرو سره چې خلک به يې په ليدلو سره اريانېږي، پر ۱۹۹۲ زېږديز کال د صحنې مخې ته راغلل او په نبوي سنتو او نښېرونو کې له هغوی څخه د ((**رايات السود الصغار**)) يا د کوچنيو تورو توغونو په توګه تعبير شوی دی، تر څو له هغو غټو تورو توغونو څخه چې د بني عباسو (ايران) به وي او تر هغوی به مخکې شتون لري، توپير وشي.

د روايتونو په يوه برخه کې د وخت موده چې د تورو توغونو د درلودونکيو او د مهدي د راڅرګندېدلو په منځ کې تېرېږي، دوه اويا مياشتې (شپږ کلونه) دي؛ که څېرته دغه ډول روايتونه سم او پر ځای وي، څو مياشتې د مهدي راڅرګندېدلو ته پاتې نه دي.

مشهوره ده چې لومړني کسان چې له مهدي سره مرسته کوي او د حکومت لپاره يې زمينه چمتو کوي، د تورو توغونو درلودونکي (طالبان) دي. له حضرت محمد صلی الله عليه وسلم څخه روايت دی چې وايي: ((**يخرج الناس من المشرق فيوطئون للمهدی سلطانه.**)) [ابن ماجه، طبراني او...] ((خلک له ختيځ څخه راوځي او د مهدي د حکومت لپاره زمينه چمتو کوي.))

**((تخرج من خراسان [افغانستان] رایات سود فلا یردها شي حتى تنصب بایلاء [القدس.])) [رواه احمد... نعیم بن حماد عن ابی هریره، قال ابن کثیر: هذه الرایات السود تاتی صحبة المهدی.]**

((له خراسان [افغانستان] څخه تور توغونه راوځي او د هغوی مخه هیڅ څوک نیولی نه شي، تر دې چې د قدس پر څلوردېوالونو یا لوړو ځایونو ورخېژي.)) علامه ابن کثیر وايي: ((دغه تور توغونه د مهدي په وخت کې راڅرګند برې.))

**((اذا رایتم الرایات السود قد اقبلت من خراسان فاتوها و لو حبوا على الثلج فان فیها خلیفة الله المهدی.)) [احمد، نعیم بن حماد، الحاکم و ابو نعیم من حدیث ثوبان] [و... الحاکم و واقفه الذهبی، و صححه مصطفى العدوی فی الصحیح المسند من احادیث الفتن و الملاحم.]**

((کله چې مو تور توغونه ولیدل چې د خراسان نه لوري راځي، د هغوی پر لوري ولاړ شئ، که څه هم د یخ پر مخ د سر په وسیله تګ وي [تاسي ته ستونزمن وي]، ځکه د الله جل جلاله خلیفه مهدي د هغوی په منځ کې دی.)) [پورتني روایتونه حاکم صحیح نیولي دي او علامه ذهبي هم له هغه سره همغږی دی او مصطفی عدوي په مسند صحیح د جګړو او پایلاتونو په حدیثونو کې صحیح نیولي دي.

## پینځمه پیښه: د افغانستان (د تورو توغونو د درلودونکیو) د سر کوبولو لپاره د لویدیځ د توغونو راتګ

دغه جګړه د ۲۰۰۱ زیږدیز کال په اکتوبر کې رامنځته شوه، د روایتونو او نښېرونو له کتنې څخه تر سترګو کېږي چې له توغونو سره د لویدیځ (امریکایي او برتانوي اتحاد) د راتګ لامل یو اختلاف دی چې د تورو توغونو د درلودونکیو تر منځ پېښېږي. وروسته لویدیځ د هغوی د سرټکولو لپاره راځي، مګر له دغه سرټکولو څخه یې پټه موخه پر نړۍ واک او سلطنت چلول دي چې له کمونېستي ختیځ څخه پیل او د اسلامي- منځني ختیځ پر ولکې او محاصرې به پای ته رسېږي. د لویدیځ د توغونو مشر ګوډ کندي شخص، د ټولو ګډو ځواکونو بولندوی ((ریچارډ مایرز)) ؤ او دا هم د مهدي د راڅرګندېدلو له نښو څخه یوه نښه ده؛ دا وروستنۍ نښه ده چې تر اوسه پېښه شوې ده او هغه څه چې تر دې وروسته به په لیکنه کې راځي، هغه پېښې دي چې په زماني ترتیب سره به پېښېږي.

## شپږمه پیښه: ((ارماګدون)) دریيمه نړیواله جګړه

د نښو نښانو دویمه برخه ده چې ختیځ او لویدیځ ورته چمتووالی نیسي او ځواکونه او لښکرې تر بېلابېلو توغونو لاندې راټولوي. رومي لویدیځ دا مهال بشپړ تیارۍ لري او بېدینه کمونېستي ختیځ او ملګري یې د دغې جګړې د پېښېدو لپاره د کوچني ټکان په تمه

دي. له عراق پرته نور مسلمانان له رومي لويديځ سره سوله او پخلاينه کوي او اړوځي چې له لويديځوالو تړون کوونکيو سره د ختيځ پر بله (ضد) يو شي.
ورانوونکې اټومي جګړه به پېښنه شي چې هيڅ ځيز به پاتې نه شي او برياليتوب به د اسلام او رومي لويديځ د جنګياليو په برخه وي.

## اوومه پېښنه: د سرو زرو له غره څخه د فرات مخ ګرځونه

په عراق کې اټومي بمبارۍ د دې چارې لامل کېږي او دا جدي شونتيا هم شته چې لښکرې په اوبو کې سمندري جګړې هم پيل کړي. لکه څنګه چې نعيم بن حماد په خپل سند سره روايت کوي: ((**لا تدع الروم على الساحل ايام الملاحم ماءً الا عسكروا عليه.**)) [**باب: ما بقى من الاعماق، ۲۰۳ مخ**]
((روميان د جګړو په ورځو کې د اوبو په کڅ [ساحل] کې هيڅ ځای نه پرېږدي، مګر دا چې خپلې لښکرې هغه لوري ته رهي کړي.))
ښايي د اوبو مخ ګرځونه د ترکيې له لوري د غچ اخيستنې له مخې وي. ترکيه چې د تاريخ په پړاوونو کې د اسلامي خلافت ځای ؤ، په پر له پسې ډول د کفر او بېدينۍ پر لور خوځي، تر دې چې د کفر په لمنه کې له منځه ځي. سبحان الله دا مهال ترکيه لسګونه تړلې يا د اوبو بندونه پر سيندونو تړلي دي او د ((ابليسو تړله يا بند)) وروستنۍ تړله ده چې د فرات اوبه په بشپړه توګه مهار کولی شي.

هغه مهال په فرات کې د سرو زرو غر به راڅرګند یږي، د دغې شونتیا پیښېدل هم له مخکنیو شونو او کېدونکو پیښو څخه کم نه دي.

**((دغو سرو زرو ته مه نږدې کېږئ!))**

زموږ ګران حضرت رسول اکرم صلی الله علیه وسلم موږ ته دا رابښيي چې دغه د سرو زرو غره ته نږدې نه شو، ځکه چې تر څنګ یې سخته جګړه پیښېږي او وژنه هغې کچې ته رسېږي چې په هرو سلو کسانو کې نهه نوي (۹۹) کسان وژل کېږي؛ هر هغه څوک چې په هغه ځای کې سوب وي، تږي لېږي دې شي او له هغه دې څه شی نه پورته کوي. هغه سره زر به واقعي سره زر وي، نه تور سره زر (نفت)، چې زیاتره خلک یې په اړه هغسې ګومان کوي. ځکه نفت د نړۍ په زیاترو هېوادونو کې موندل کېږي او د زمکې په ژورو کې شته چې د یوه سیند د اوبو په مخ ګرځوني یا ناستې سره نه موندل کېږي او یوائې د فرات سیند دی چې له نورو سیمو څخه د سرو زرو د غره په وسیله ځانګړی او تاکل شوی دی او دغه نښه د بل ځای لپاره ویل او راوړل شوې نه ده.

## اتمه پېښه: د سعودي د خليفه مړينه

هر څوک چې د بل چا پر ځاى د چارو واګې په لاس کې ونيسي، خليفه ورته ويل کېږي، وړاندې مو هم وويل چې ښايي ((ملک فهد)) وي. کـه چېرتـه الله جـل جلالـه وغـواړي مـام يـې اوږد کـړي او کـه وغـواړي، داسـې ونکـړي، ځکـه چـې د الله جـل جلالـه خوښـه ده او هيڅوک کولی نه شي چې هغه راوګرځوي. فکر کوم چې وړاندې مې بيان کړی دی.

هغه مهال د هېواد د چارو د واک پر نيولو کورنۍ جګړې پېښېږي او له شاهي کورنۍ څخه درې کسان د رهبرۍ او واک د نيولو پر سر لـه يو بل سره شخړې او اختلافونه کوي.

استاد محمد حسنين هيکـل پـه خپـل ارزښـتمن کتـاب ((جاپـانې ليکنې)) کې يو ځانګړی څپرکی د ((د سعودي اوتا تـه يـوه کتنـه)) تـر سرليک لاندې دغه بحث تـه ځـانګړی کـړی دی. هغـه پـه دغـه ليکنـه کې د امير سلطان (د لښکر بولندوی) او امير سلمان (د دفـاع وزيـر) له هغو شخړو څخه پرده پورته کړې چې دوی يې له خپل ميرني ورور امير عبدالله (اوسنی وليعهد) سره لري.

د سياسي اوتا تر کتنې او تحليـل وروسـته ليکـي: ((دغـه مسـئلې لـه تاوجنې او مشتنجې اوتا څخه کيسه کوي، سربېره پر دې، که چېرې هغه فضا چې د سعودي پر ګاونډيو حاکمه ده او هغه څه چې د خليج په سيمه کې تېرېږي، تر کتنې لاندې ونيسو؛ ګورو چې خطر يواځې

په یوه هېواد پوري تړلی نه دی، بلکې ټوله سیمه په ځان کې رانغاړي. بیا هم کتل په کار دي چې اوتا څنګه مخ پر وړاندې درومي، لکه څنګه چې دغه هېواد د مسلمانانو حیاتي شارګ دی، په ناکراري کې شپې ورځې سبا کوي او له یوه حساس پړاو څخه تېرېږي. [۱۲۲ مخ]

البته کولی نه شو، ووایو چې د اوومې او اتمې پېښو ترتیب دې حتمي همداسې وي، ښایي وړاندې وروسته شي او د هغوی زماني ترتیب په هغو سرچینو او ښښېرونو کې چې له موږ سره شته، نه موندل کېږي، البته زه په هغه ترتیب کې هیڅ ستونزه نه وینم چې ما یې یادونه کړې ده.

## نهمه پېښه: د روژې د میاشتې (رمضاني) ښښې

د خلیفه له مړینې او تر هغې وروسته د پېښو د شخړو او اختلافونو سره هممهال او په سیمه کې د ګډوډیو له امله نور پایلاتونه رابرسېره کېږي او خلک اسماني- اریانوونکې ښښې د روژې په میاشت کې ګوري. اوس هغه پرته له ترتیبه راوړو، که هره یوه یې لومړی ومونډل شوه، نورې ښښې به دویمه، دریمه او.... وي او د خلکو اوتا به داسې وي چې د روژې د میاشتې تر تېرېدلو وروسته به د نورو لویو پېښو په تمه ناست وي، دغه ښښې ښایي په لاندېني ترتیب سره وي:

- د روژې د میاشتې په لومړیو کې سپوږمۍ تندر نیسي؛
- تر هغه وروسته د زمکې شاوخوا ته لکۍ لرونکې ستوري راڅرګندېږي او اسمان روښانوي، ته به وایې چې ګواکې ستنه له رڼا او نور څخه جوړه شوې ده. (د څېړونکیو په اند، د دغه لکۍ لرونکي ستوري په رانږدې کېدلو سره د زمکې پر مخ د یو لړ طبیعي پېښو د راڅرګندېدلو لامل کېږي. د زمکې یو لړ برخې د اوبو د سخت جریان او د سمندر د راپورته کېدلو له امله ډوبېږي، په دغو زمکو کې به د امریکا د فلوریډا او د نیویارک زمکې وي [الله جل جلاله ښه پوهېږي] او دغه چاره د اریانوونکو مسئلو په لړ کې تر عقل لېرې خبره نه ده.)
- وروسته یو لوی وېروونکی غږ تر غوږونو رسېږي او ټول خلک یې اوري. دغه غږ چې له اسمانه راځي، خلکو ته زیات تاوانونه رسوي؛ البته دغه پېښه د جمعې په شپه د روژې د میاشتې په نیمایي کې رامنځته کېږي.
- د روژې د میاشتې په نیمایي کې لمر تندر نیسي؛
په څرګنده دغه دوې پېښې په یوه ورځ رامنځته کېږي یانې غږ د شپې له خوا اورېدل کېږي او لمر به حتماً تندر نیسي، مګر په بشپړ باور سره سړی ویلی نه شي چې کومه یوه به وړاندې رامنځته کېږي.

## لسمه پېښه: د پايلاټونو او جګړو پيښېدل

د روژې په مياشت کې د اسماني- اريانوونکو پېښو تر رامنځته کېدلو وروسته د پايلاټونو وروسته پرانيستل کېږي، د پايلاټونو سمندرونه خپانده کېږي، د امت پر لوري راځي او هر چا ته پر مخ يوه خپېړه ورکوي. د شوال په مياشت کې شخړې پېښېږي چې د يو لړ قبايلو خوځېدل د ځينو نورو پر لوري د جګړې لپاره وي (ځينې هېوادونه د جګړې اعلان کوي.) وروسته په ذی القعده کې د قبيلو راټولېدل دي يانې د اسلامي هېوادونو شخړې او د وسله والې جګړې پيل دی. په همدې کال خلک حج ته ځي، په داسې حال کې چې امام به نه لري. د حج په ټاپي کې له يو بل سره په جګړه کې ښکېلېږي او په عقبې جمره کې به د سپېڅلو وينو سېلاو روان شي.

## يوولسمه پېښه: د محرم په مياشت کې د مهدي راڅرګندېدل

د جګړو او پايلاټونو تر رامنځته کېدلو وروسته مهدي د محرم په مياشت په مکه مکرمه کې د مسجد الحرام تر څنګ راڅرګندېږي او هغه ډله عالمان چې د هغه نښې او ځانګړتياوې پېژني، د رکن (حجر الاسود) او مقام تر منځ ورسره بيعت کوي چې پايلاټونه د هغه په لاس غلي شي او د خلکو وينه ودرول شي.

## دولسمه پېښه: په زمکه کې د لښکر ننوتل او د مهدي شهرت

سفیاني شخص عراقي لښکر د شام له خوا د مکې مکرمې پر لوري لېږي چې له مهدي سره په جګړه کې ښکېل شي او په نورو سیمو کې یې د ځواکونو د نفوذ او پراختیا مخه ونیسي. نوموړی لښکر رهي کېږي او له مدینې منورې څخه تر تېرېدلو وروسته په داسې حال کې چې د مکې مکرمې لاره یې په مخ کې وي، د مدینې منورې د بیداء په سیمه کې د الله جل جلاله په امر په زمکه کې ننوځي او له دغه زیانمن شوي لښکر څخه یوازې یو کس ژغورل کېږي چې خلک له دغې پېښې څخه خبر کړي؛ په همدغه وخت کې د مهدي راڅرګندېدل مشهورېږي او له هر لوري خلک له هغه سره د بیعت او مرستې لپاره راښوه کېږي او دولس زره یا پینځلس زره جنګیالي کسان یې په شاوخوا کې راټولېږي چې زیاتره یې د تورو توغونو درلودونکي دي. د عراق ډلې، د شام ابدال او د مصر نجیب خلک هم له هغه سره یو ځای کېږي.

## دیارلسمه پېښه: د کلب غنیمتونه

سفیاني شخص له هغه عذاب څخه چې پر لښکر یې راغلی وي، د عبرت درس نه اخلي او د کلب له قبیلې څخه د مرستې غوښتنه کوي او یو بل لښکر چمتو کوي او د مهدي پر بډ د جګړې لپاره یې

لېږي. مهدي او ملګري يې دغه لښکر ته ماته ورکوي او له هغوی څخه په زياته کچه غنيمت تر لاسه کوي.
رسول الله صلی الله عليه وسلم په دې اړه وايي: ((**والخيبة لمن لم يشهد غنيمة كلب.**))
((هر څوک چې د کلب په غنيمتونو کې برخه نه لري، په زيات او سخت تاوان کې دی.))

## څوارلسمه پېښه: مهدي جزيرة العرب فتح کوي

د حجاز د شاوخوا سيمو د چارو واګې په لاس کې اخلي او پر هغوی به واک چلوي، دغه سيمې له يمن، د عربو متحده امارات، کوېټ، قطر، عمان او ټولې جزيرې څخه عبارت دي.

## پېنځلسمه پېښه: د پارس (ايران) فتح

مهدي د پارس تر بريده هم اوړي او ايران تر خپل واک او ګورت لاندې راولي.

## شپاړلسمه پېښه: د يهوديانو ماتېدل، د بيت المقدس فتح او د اسير اقصی جومات ازادېدل

همدغه ځای دی چې د اسرائيلو د حکومت مام پای ته رسېږي، مګر ټول له منځه نه وړل کېږي، خو د هغوی پاشلې ډلې د ژغورونکي

پادشاه (دجال) په تمه وي. تر دې وخته پورې له هغوی څخه اويا زره کسان پاتې کېږي. اړينه وينم چې يوه ډله دعوتګر وروڼه خبر کړم، چې د اسرائيلو د دولت پای د مهدي په لاس دی او د دجال وژل او له يهودو څخه د پاتې ډلو ختمېدل به د عيسى عليه السلام تر راکېوتو (نزول) وروسته سر ته رسېږي.

## اوولسمه پېښه: لويه جګړه

روم لـه اتيـا توغونـو او هغـه لـښکر سـره چـې نـږدې يـو ميليـون (۹۶۰۰۰۰) کسان دي، له ((آرماګدون)) څخه تر وزګارېدو او خپلو هېوادونو تـه تـر ستنېدو وروسته بـه يـو ځلې بيـا د خيانت په نيت راګرځي او خپلو هېوادونو ته د هغوی د ستنېدو او د بيـا راګرځېـدو تر منځ واټن نهه مياشتې دي. هغه مهال مهدي له لښکر سره يې يو ځای د ((غوطه)) پـه سيمه کې پيدا کوي، هغـه سيمه چې لـه ډېرې مودې راهيسې يې د ترهګريزې اډې نوم ګټلی وي او هغـه هغـوی د ترهګـرو د آر منځـي (اصلي مرکـز) پـه نامـه يـادوي، هـو! همدغـه ترهګر- د هغوی په ګومان- لـه هغوی سره مخ کېږي او هغوی تـه داسې درس ورکوي چې هغه هېرولی نه شي، که څه هم نړۍ د زيات مام لپاره نه پاتې کېږي چې بيـا يـې يادښت وکړي يا يې وروستني نسلونه هېر کړي. نو هغوی د غچ اخيستنې يا عبرت اخيستلو لپاره وخت نه مومي. لنډه دا چې مسلمانان د مهدي تر لارښوونې لاندې

روم (امريکا او اروپا) تـه سخته ماتـه ورکوي او زيـاتره يـې وژنـي، داسې چې د هغوی توپې شوې وينې به د آسونو تر خولو پورې رسي. دغه جګړه به تر ځلورو ورځو پورې وي- لکه څنګه چې پـه صحيح مسلم کې راغلي دي- او د آس او تورې پر مټ بـه وي، د ټولـوژنې وسلې بـه لـه منځـه ځي يا دا چې د کوم دليـل لـه مخې بـه لـه کاره لـوېږي، کـه څـه هـم شتون ولـري او لـه هغې څخـه د ګټې اخيستنې اجازه هم وي. د شـام (سوريې) پر لـوري د امريکـا، لـويې برتـانيې او اروپايي ټولنې د لښکرکشۍ لپاره نـور چمتـووالی او لـه مسلمانانو سره يې د مخامختيا بل چانس شتون ولـري، خو دا بـه هم اسـانه نـه وي چې د خپـل تلپـاتي معمـول غونـدې سـوريه د لرتوغوونکيـو- کنټرولېدونکيو اټومي او مايکروبي بمونو يا توغنديو پـه وسيله تـر بريدونو لاندې ونيسي؛ هغسې چې په هيروشيما، ناګاساکي، عراق او افغانستـان کې يې وکارول. پرته له شکه دغه جګړه به په وچـه کې په مخامخ ډول د ساده او لومړنيو وسلو پر مټ وي.

### اټلسمه پېښه: له روسيې، چين او هند سره جګړه

دغه جګړې د خوز او کرمـان پـه نامـه يـادېږي، پـه دې کې بـه مهـدي ونډه نه لري، ځکه د دغه لښکر په راستنېدلو کې عيسـی ابـن مـريم عليه السلام پيدا کېږي چې لـه اسمانه بـه راکښوتی وي. مهـدي تـر لـويې جګـړې وروسـتـه دغـه لـښکر لـېږي او د هغـوی جګـړه وخـت

نیسي، تر دې چې سیمه فتح کوي او لکه د «واجپای» یا د صدراعظم په کچه وګړي او.... غوندې خلک اسیروي او بېرته راګرځي او کله چې عیسی علیه السلام ویني، ډېر زیات خوښېږي.

## نولسمه پېښه: د قسطنطنیې (ترکیې) فتح

له بني اسحاق (اهل کتاب) څخه چې په وروستني زمانې کې یې اسلام منلی وي، اویا زره کسان یې د ترکیې د حکومت له پلازمېنې آستانې یا استانبول، قسطنطنیې سره جګړه کوي او دغه ښار د «لا اله الا الله» او «الله اکبر» په غږونو سره فتح کوي. هر کله چې دغه غږونه او چیغې د ښار له دېوالونو سره ټکر کوي، دېوالونه رانړېږي او لښکر ښار ته ننوځي. [صحیح مسلم]

دغه ښار د دجال له راوتلو څخه څه موده وړاندې فتح کېږي، لکه څنګه چې حضرت محمد صلی الله علیه وسلم یې په اړه ویلي دي یانې تر اوسه پورې دا فتح رامنځته شوې نه ده، هغسې چې یوه ډله یې تصور کوي او له هغو خلکو هیله کوم چې د دین په اړه خبرې کوي، ژبې دې د هغو څیزونو په اړه چې ترې خبر نه دي، وساتي او مسلمانانو لکه څنګه چې پخوا یې قسطنطنیه فتح کړې ده، یو ځل بیا یې هم فتح کوي.

## شلمه پېښه: د مسيحي دجال راڅرګندېدل

د قسطنطنيې تر فتحې زيات وخت نه تېرېږي چې دجال راڅرګندېږي، ښايي د راڅرګندېدو لامل يې هم د مسلمانانو پر له پسې برياوې او فتوحات وي چې هغه خورا زيات سرساموي او عصبي کوي. دجال تر څلوېښتو ورځو پورې د عربانو په زمکه کې پاتې کېږي، يوه ورځ يې لکه د يوه کال غوندې، يوه ورځ يې د يوې مياشتې په اندازه او يوه ورځ يې لکه د يوې اونۍ غوندې اوږده وي، پاتې ورځې به يې لکه د عادي ورځو غوندې وي. حضرت محمد صلی الله عليه وسلم موږ ته خبر راکړی دی چې بايد د لمونځونو وخت او اندازه په هغو اوږدو ورځو کې رعايت شي يانې په لومړۍ ورځ کې د يوه کال په اندازه لمونځ وکړو او پر دويمه ورځ د يوې مياشتې په اندازه لمونځونه وکړو او.....

## يوويشتمه پېښه: د عيسی عليه السلام راکښوتل، د دجال وژل او د ياجوج او ماجوج راڅرګندېدل

عيسی عليه السلام د دجال د ژوندانه په وروستيو ورځو شپو کې له اسمانه راکښوځي. دجال لټوي، تر دې چې د فلسطين د لد په دروازه (باب لد) کې هغه ته رسېږي او هغه د نېزې په څوکې وژني. همغه مهال يې به د اويا زرو په شمېر يهودي پليوني (پيروان) د ونو او تيږو تر شا پټېږي او مسلمانان به د مهدي تر بولنې لاندې او د عيسی

علیه السلام تر شارني لاندې هغوی وژني او زمکه به د هغوی له چټلۍ او خیانت څخه پاکوي. وروسته لږ وخت نه تېرېږي چې یاجوج او ماجوج راڅرګندېږي او زمکه د هغوی له ډلو څخه ډکېږي، همغه مهال عیسی علیه السلام د هغوی پر بدو الله جل جلاله ته دعا کوي او هغوی پرته له ځنډه مري. بیا عیسی علیه السلام دعا کوي او یو ډول مارغان راځي او د هغوی تنې (جسدونه) وړي او په کوم ځای کې چې د الله جل جلاله خوښه وي، غورځوي یې او الله جل جلاله زمکه د هغوی له چټلۍ او بد بوی څخه پاکوي.

## دوه ویشتمه پېښه: د روم (ایټالیې) فتح

تر هغې وروسته مسلمانان د ایټالیې د پلازمېنې روم پر لوري رهي کېږي او واتیکان ته ننوځي.

## درویشتمه پېښه: د مهدي او د عیسی علیه السلام مړینې

مهدي د عیسی علیه السلام تر راکښوتو وروسته ډېر وخت نه پاتې کېږي، بلکې یو یا دوه کاله پاتې او بیا مړ کېږي. تر هغه وروسته مسلمانان د عیسی علیه السلام تر پام او نظر لاندې یو بل خلیفه ټاکي، هغه هم ((قحطاني)) دی او د مهدي غوندې به یې کړه وړه وي او په نېکۍ او چلند کې تر مهدي کم نه وي، بلکې د هغه غوندې به

وي. عیسی علیه السلام د مهدي تر مړینې پېنځه یا شپږ کاله وروسته مري او مسلمانان به یې د ځنازې لمونځ کوي.

## څلرویشتمه پېښه: د کعبې ړنګېدل او د ورځلوی د سترو نښو پیل

((ذوالسویقتین)) حبشي پر کعبه واک تېنګوي او هغه ړنګوي او تیږې یې یو پر بل وهي، زیات وخت نه تېرېږي چې لمر د لویدیځ له لوري راخېژي. وروسته یو غټ څلوربولی (حیوان) په صفا کې له صدع څخه راوځي اوْ له خلکو سره خبرې کوي او هغوی به له څېرو څخه پېژني، د مؤمنانو څېرې روښانه (نوراني) ګرځي او د کفارو څېرې تورې او تیاره غوندې غوندې وي؛ وروسته په اسمان کې یو لوی لوګی تر سترګو کېږي چې د مؤمنانو په حق کې رحمت او د کافرانو په حق کې عذاب دی.

وروسته یو نرم باد د شام له لوري الوځي او له ټولو مؤمنانو څخه ساوې اخیستل کېږي او د کفارو په نوم هیڅوک د زمکې پر مخ نه پاتې کېږي؛ وروسته درې ځلې په ختیځ، لویدیځ او د عربو په زمکو کې لمر تندر نیسي، تر هغه وروسته اور له یمن څخه راوځي او خلک په شام کې د محشر د زمکې پر لوري مخ کوي. تر هغه وروسته ورځلوی رامنځته کېږي او ګردسره مخلوقات له منځه ځي او هستي د خپلې لومړنۍ آر بڼې په توګه سودیم او بخار راوځي.

دغه د نړۍ د مام وروستنۍ برخه ده چې په پټ پایلات- پر کوښټ د عراق له برید- سره پیلېږي او له وېروونکي پایلات چې عبارت له جګړو او وینو تویولو څخه دي، تېرېږي او وروسته د عیسی ابن مریم علیه السلام په راکښوتو سره پای مومي. همدغه وخت دی چې جګړه تولې وسیلې پر زمکه غورځوي، زمکه برکت او خیرات دباندې راوباسي، کینې او دښمنۍ پای مومي او د هر کینه کښ انسان کینه او رخه له منځه ځي؛ لکه څنګه چې کوچنی ماشوم خپل لاس د مار په خوله کې ږدي او هغه ته ستونزه نه رسوي یا زمري ته یې لور او بچی زیان رسوي، خو زمری ترې غېچ نه اخلي او خلک به په هوسایۍ او امنیت کې ژوند کوي. تر دې وروسته د ورځلوی لوییې نښې راڅرګندېږي. له الله جل جلاله څخه سلامتي او ښښنه غواړم.
لېوالتیا لرم، وړاندې تر دې چې اسلامي امت ته وروستنۍ وینا وړاندې کړم، وایي چې د وروستنۍ زمانې د پېښو اثبات او نومونې پېښې په هغه ترتیب سره چې ما ثابتې کړې دي، له فوق العاده ارزښت څخه برخمنې دي او ما په اټکلي توګه او له څېړنې پرته هغه بیان کړي نه دي، بلکې په نبوي حدیثونو او هغو ښښرونو کې چې د پایلاتونو او جګړو په باره کې راغلي دي، تر پراخې او ژورې لوستنې وروسته دغه مطلبونه راوړي دي. زه لکه څنګه چې له الله جل جلاله څخه د خپلو تېروتنو، نیمګړتیاوو او سهوو په باره کې د زده کړې غوښتونکی یم، له هغو کسانو څخه چې په دیني چارو کې

غړېږي، ترې غواړم چې پر پايلاتونو او جګړو د خبرو کولو پر مهال دې زيات ځير واوسي. لومړی دې د پايلاتونو فقه زده کړي، وروسته د بيان پر مهال دې چارې په يو او بل کې ګډې نکړي، لکه څنګه چې يوه ډله خلک له يو لړ چارو نښه کوي او يوه بله ډله د پېښو نښته او ترتيب په شکمنه توګه وړاندې کوي، لکه ځينې چې د مهدي له راڅرګندېدو څخه نښيالي (منکر) شوي دي. ځينې نړيوال آرماګدون نه مني، يوه ډله د قسطنطنيې او روم له فتحو څخه نښيالي دي يا لکه د هغې يوې ډلې غوندې چې وايي په هغه جګړه کې چې تېرې او ونې پکې خبرې کوي او مسلمانان پکې يهوديان له تېغه تېروي، د مهدي تر راڅرګندېدلو وړاندې پېښېږي يا هغه ډله چې له لويديځ څخه د لمر راختل د ورځلوی لومړنۍ نښه ګڼي او د دجال راوتل او نورې مسئلې تر هغه وړاندې نه ګڼي.

د دغه ډول خلکو په اړه د الله جل جلاله دربار ته شکايت کوم. مسئله ډېره مهمه ده او هر ډول سهوه او اشتباه د هغې په بيان کې ډېرې ستونزې راولاړوي، د بېلګې په توګه مهدي راڅرګندېږي او يوه ډله يې له راڅرګندېدو نښيالۍ شي او کفران يې وکړي، هغه مهال به اوتا څنګه شي. يا دجال راڅرګند شي او يوه ډله ووايي چې د ورځلوی لومړنۍ نښه له لويديځ څخه د لمر راختل دي، شونې ده چې هغه مهال د هغه د پايلات په دام کې ونښلي او ښايي د نورو اصلي پايلاتونو په پرتله هم تېروځي.

یوې بلې ډلې وېروونکې اند ښنه رامنځته کړې ده چې هیڅ ډول پوهنیز یا علمي حقیقت نلري او هغه دا چې وایي: ((د مهدي تر راڅرګندېدو وړاندې حتماً اسلامي خلافت راژوندی کېږي.)) د ((د اسلامي امت مام)) او ((القول المبین)) په کتابونو کې مې دې شک ته د نبوي حدیثونو، د علماوو د ویناوو او د عقلي او نقلي دلیلونو په رڼا کې ځواب ورکړی دی چې تر مهدي وړاندې د خلافت په نشتوالي کې هیڅ شک نه پاتې کېږي.
د پېښنو په ترتیب کې دا وروستنی بیان دی او د خبرو د پړې کېدا او اوږدېدا د مخنیوي لپاره د هغو حدیثونو د متنونو له راوړلو څخه ډډه کوم چې د پورتنیو پېښنو په باره کې راغلي دي او پر یوې نغوتې بسنه کوم. ګران لوستونکي کولی شي چې د هغو حدیثونو متنونه چې په دې کتاب یا ((د اسلامي امت مام)) یا ((القول المبین)) کې راغلي دي، راوسپړي.

**والحمد لله رب العالمین**

هغه کسان نېکمرغه دي چې له ړندو، کڼو او پڅو پايلاتونو، توري او تياره ګاندې (راتلونکي) څخه خبرتيا ولري؛ هغه پايلاتونه چې عراق لکه د پنبې روغه دانه چې پايمال شي، د شام زمکې لکه د غنمو غونډې دوه نيمايي کړي (ټوټه- ټوټه کوي يې) او مصر لکه د پچې غونډې کوچنی کوي (لکه څنګه چې ډوډۍ د ښوروا لپاره وړه- وړه يا ټوټه- ټوټه کېږي او پچه چې هر کله وچه شي او څلوربولي [حيوانات] يې تر پښو لاندې نرمه او پايمال کړي.) همدغه ځای دی چې د ضربو يا وهلو او د واردو شويو څپېړو لوری نه څرګندېږي او څوک نه پوهېږي چې له کومه راځي.

هغه کسان نېکمرغه دي چې پر دې ګروهمن دي چې دغه پايلاتونه د رسول اکرم صلی الله عليه وسلم د وينا له مخې حتماً پېښېږي؛ وپوښتئ چې آيا د ژغورنې کومه لاره شتون لري؟ او ترې د تېښتې کوم ځای شته؟

زه د دغه پوښتونکي په ځواب کې وايم چې د هغه الله جل جلاله ستاينه ده چې درد رالېږي، نو ورته يې درمل جوړوي. هغه څه يې تر لاسه کړل، چا چې يې تر لاسه کول غوښتل او هغه چې ځان يې په اړه ناخبره او ناګاره اچاوه، هغه ناخبره او ناګاره پاتې شو. نبوي حديثونه او ښېرونه د پايلاتونو او د وروستني زمانې د جګړو په اړه په څېړنيز ډول راغلي دي او له هغو څخه د ژغورنې لپاره هم په څېړنيز ډول او ځيرتيا سره بيان شوی دی چې له هيڅ مهمې، کم

موندونکې او خطرناکې پېښې او هیڅ کوچنۍ او لویې پېښې څخه سترګې پټې شوي نه دي، بلکې په ټولو اړخونو کې یې ستره پوهنیزه زیرمه پرېښې چې له اصحابو څخه یې پرې یوه ډله خبرتیا لري او بلې ډلې یې لټون کړی نه دی. بیا له هغو کسانو څخه چې هغه یې یاد کړي وو، یوه برخه یې یاده کړه او دغه شمېره ډېره لږه او د ګوتو په شمېر ده او پاتې نور د الله جل جلاله د پوهې او حکمت له مخې چې ډېر ښه پوهېږي، هغه یې هېر کړل او د الله جل جلاله د پوهې ستاینه او ثنا وایم.
هماغسې چې د پایلاتونو او د وروستنۍ زمانې د جګړو پېښېدل په حدیثونو او ناپېژندل شویو ښنېرونو، هغه هم په کم موندونکیو او لیکي کتابونو کې ثابت او ښودل شوي دي. نبوي څرګندونې او ارزښتمن ورمونه (نصایح) چې د ژغورنې لارې څرګندوي، نو زیاترو وګړیو- که څه هم هغه په تېر او یا اوسمهال کې دي- هم پټ ایښي دي. یواځې هغه ډله وګړي چې الله جل جلاله هغوی د دغو علومو پر یادولو او وروسته د پایلاتونو په نږدې وختونو کې پر خپرولو یې ټاکلي او مامور ګرځولي دي. د دغه ډول څرګندونو او ورمونو په لټه کې دي.
اوسمهال د پېښو تر څېړنیز څرګنداوي وروسته په لنډه توګه د ژغورنې لارې وړاندې کوم چې په سنتو کې یې یادونه شوې ده. لومړی حدیثونه او پېژندل شوي ښنېرونه چې په پېژندل شویو

مسندونو، د سنن په کتابونو او صحیحینو لکه بخاري، صحیح مسلم، مسند ابو داود، نسايي او.... کې راغلي دي، راوړو. وروسته پټې او نامشهور ننبېرونه پرته له کوم ټینګار او فشار څخه د سند د کمزورتیا او روغتیا په اړه راوړو، ځکه دغه حدیثونه او ننبېرونه د عملونو د فضایلو په اړه هغه ورمونه او ویناوې دي چې علماوو د سند له کمزورتیا پرته د هغوی په منلو کې لټې کړې ده او هغه یې منلي دي، ښایي دغه ټکی یې په پام کې نیولی وي چې خورا ډېر کمزوری سند یا له سکالو سره یې اړیکه نه وي او له بل لوري هغه حدیثونه مې راوړي چې له بېلابېلو لارو او په بېلابېلو سندونو سره روایت شوي دي او د هغوی په کتاب کې راوړل زما د زړه د ډاډ لامل ګرځېدلی دی.

په دغه برخه کې نبوي څرګندونې وړاندې کوم چې د وروستني زماني د جګړو لـه هلاکوونکیو درو څخه، د راتلونکیو تیارو د ژغورنې له لارې او له څرګندو ننبو څخه زمونږ د لارښوونې لپاره راوړل شوي دي. د لوی الله جل جلاله له درباره له ټولو هلاکوونکیو، کوچنیو او وړو پایلاتونو څخه د سپېڅلتیا او ساتنې غوښتنه کوم.

## لومړنۍ يادونه: د عراق له زمکې، خلکو او د سرو زرو له غره څخه يې ډډه وکړئ

امام بخاري په خپل صحيح کې او امام مسلم له ابن عمر رضی الله عنه څخه روايت کوي چې هغه له رسول الله صلی الله عليه وسلم څخه په داسې اوتا کې چې حضرت محمد صلی الله عليه وسلم مخ په قبله ؤ، واورېدل چې ويل يې: ((خبر واوسئ! پايلات له هغه ځايه دی، په هغه ځای کې چې د شيطان ښاخ راڅرګند ېږي.))

د حضرت محمد صلی الله عليه وسلم نغوته د ختيځ (عراق، د عراق د خاورې او خلکو) پر لوري وه. امام مسلم دغه روايت له يوې بلې برخې سره له سالم بن عبدالله بن عمر څخه رانقل کوي: ((ستاسې له ورې څخه څه وپوښتم، په داسې اوتا کې چې لويه او ستره پر تاسې راڅي، له پلاره مې وپوښتل، ويل يې چې له رسول الله صلی الله عليه وسلم مې واورېدل چې ويل يې: [پايلات له همدغه ځايه راځي.]))

ابو داود د انس رضی الله عنه له حديث څخه روايت کوي چې رسول الله صلی الله عليه وسلم هغه ته وويل: ((ای انسه! خلک ښارونه جوړوي او يو ښار به په دې کې بصره يا بُصَيره نومېږي، که چېرته تر څنګ يې تېر شوې يا ورننوتې، نو له شوديارو او يېبرورو (حاصلخېزو) زمکو، له وښو او بازاره او د هغه د واکمنو له ورونو يې ډډه وکړئ او د هغه شاوخوا ژوند غوره کړه، ځکه چې په هغه

ښار کې به کېوتل (زمکه خلک ښکته کشوي)، د کاڼو یا تیږو باران او سختې زلزلې به وي او د خلکو یوه ډله به په داسې اوتا کې شپه سبا کوي چې ښې به یې د شادیانو او خوګانو غوندې ګرځېدلې وي.))
په یوه بل روایت کې له ثعلبي څخه راځي: ((.... په هغه کې د زمکې ستمګر او ظالم به راټولېږي.)) [د امام قرطبي د کتاب التذکره د پایلات برخې ته مراجعه وکړئ.] مګر د سرو زرو د غره په اړه چې په عراق کې د فرات د کېناستې او مخ اړونې په پایله کې راڅرګندېږي، رسول الله صلی الله علیه وسلم وایي: ((نږدې ده چې فرات د سرو زرو له غره څخه مخ واړوي، هر څوک چې له تاسې څخه هلته سوب وي، له هغه دې څه نه پورته کوي.)) بخاري په کتاب الفتن کې له ابو هریره څخه دغه روایت رانقل کړی دی او د مسلم په روایت کې راځي، چې: ((خلک د هغه لپاره له یو بل سره جنګېږي، لکه څنګه چې په هرو سلو کسانو کې نهه نوي ۹۹ کسان مړه کېږي. هر یو وایي، ښایي زه هماغه یو کس واوسم چې ژغورل کېږي.))
ای د الله جل جلاله بنده ګانو! له عراق څخه لېرې واوسئ، ځکه چې د نفاق خاوره ده او د سرو زرو له غره څخه یې هم لېرې شئ. دا لومړنۍ لارښوونه ده.

## دويمه يادونه: له هلاکېدونکي لښکر سره مه يو ځاى کېږه او که ځواک دې درلوده، زر تر زره له مهدي سره بيعت وکړه

هغه لښکر چې له مهدي سره د مخامختيا لپاره به لېږل کېږي، يو بدبخته لښکر دى چې په جګړه کې به يې سرتېري اړوتي مسلمانان يا خبر او خپلخوښي (داوطلب) مسلمانان وي او هغوى ټول به زمکه تر ستوني تېر کړي. وروسته په ورځلوى کې هر څوک په خپل نيت پورې تړلى به راپورته کېږي، د ژوندانه پاى دې په بدبختى کې مه اچوه او مړينه دې په زمکه کې له کېوتلو څخه وساته. نو له مهدي سره په بيعت کولو کې له چټکتيا څخه کار واخله، د هغه ځانګړتياوې او د هغه د راڅرګندېدو نښې يادې ساته.

رسول الله صلى الله عليه وسلم وايي: ((هغه پناه غوښتونکى چې په بيت الله کې پناه اخلي، هغه مهال د هغه د سرټکولو لپاره يو لښکر لېږل کېږي، هر کله چې دغه لښکر هوارې زمکې ته رسېږي، زمکه هغوى ښکته لورې ته کشوي يانې ننباسي يې.))

[بخاري، مسلم او.... له ام سلمه او عايشې رضى الله عنهما څخه روايت کوي او دغه روايت له مسلم څخه راوړل شوى دى.] حضرت محمد صلى الله عليه وسلم وايي: ((که چېرته مو هغه وموندہ، له هغه سره بيعت وکړئ، که څه هم د واورې يا يخ پر مخ پر ځلورې ولاړ شئ [اړ يئ]، ځکه چې هغه د الله جل جلاله خليفه مهدي دى. [احمد

او حاكم هغه د شيخينو يانې ابو بكر صديق او عمر فاروق رضى الله عنهم له لوري صحيح نيولى دي او د هغه راوي ثوبان دى. ذهبي هم له هغوى سره همغږى شوى دى او مصطفى عدوي په صحيح مسند كې هم هغه صحيح نيولى دى.]

## درېيمه يادونه: د دغه پړاو حقيقت وپېژنئ او پر خپل رب مو تل باور لرئ

ګرانه لوستونكيه! د وروستنى زمانې د پېښو څرنګوالى ياد كړه او ايمان او باور دې د الله جل جلاله په اړه ځواكمن كړه او اړيكه دې له لوى الله جل جلاله سره ټينګه وساته، ځكه چې پايلاتونه له هر چا سره ټكركوونكي دي او سخته څپېړه وركوي او هغه كس له هغو څخه ژغورل كېږي چې تر پېښېدو او يا راتلو وړاندې يې د ژغورنې لاره زده كړې وي او د هر چا ايمان چې د رب پر لوري ځواكمن او باور يې سم او پر ځاى وي، كاميابېږي.

نعيم بن حماد په خپل سند سره له ابو ثعلبه خُشني څخه روايت كوي: «زېرى تر لاسه كړئ، د هغې دنيا په اړه چې ستاسې ايمان خوري، هر څوك چې پر خپل رب باور ولري، د هغه پر لوري سپين او څرګند پايلات راځي او هر څوك چې د خپل رب په اړه شک ولري، د هغه پر لوري تور او تياره پايلات راځي. وروسته رب ته مهمه نه ده چې ته په كومه دره كې هلاكېږې.»

## څلورمه يادونه: که څواک دې درلوده په حجاز، شام، بيت المقدس يا د طور په غره کې پاتې شه

له جګړو څخه ژغورنځای د شام زمکه ده او له دجال څخه د ځانساتنې ځای مکه مکرمه، مدينه منوره، شام او سمندرغاړې يا سواحل دي. نعيم بن حماد د ((پايلاتونو)) په برخه کې په خپل سند سره له ضمره بن حبيب څخه روايت کوي چې ويل يې: ((له پايلات څخه صيَلم، د حجاز اهل او د سمندرغاړو اهل ژغورل کېږي.))

همدارنګه په خپل سند سره له کثير بن مره څخه روايت کوي چې رسول اکرم صلی الله عليه وسلم ويل: ((د دارالاسلام زړه شام دی.)) او په زياته څېړنه کې يې د شام شاوخوا ښودل شوې ده چې: ((له جګړو څخه د مسلمانانو د پناه يا ژغورنځای هغه ښار دی چې دمشق نومېږي.))

نعيم او نورو په خپل سند سره له رسول اکرم صلی الله عليه وسلم څخه روايت کوي چې حضرت محمد صلی الله عليه وسلم ويل: ((دجال پرته له څلورو جوماتونو: مسجد حرام، مسجد مدينې، مسجد طور سينا او مسجد اقصی څخه هر ځای ته رسېږي.))

## پينځمه يادونه: که چېرته دې د روژې د مياشتې اسماني نښې، لکه لرونکی ستوری او وېروونکی غږ، مو واورېد او

## ولیدل، د الله جل جلاله سپېڅلتیا بیان کړه او د خپلې کورنۍ خوراک چمتو کړه

د مهدي تر راڅرګندېدو وړاندې د روژې په میاشت په اسمان کې ځینې نښې راڅرګندېږي چې په شپږمه برخه کې د مهدي امین محمد بن عبدالله تر سرلیک لاندې بیان شوې.

له دغو نښو څخه ځینې یې سختې وېروونکې دي، لکه سخت ټکانونه او لوړ غږونه چې د اوزون[1] له برخې سره د اسماني کاڼو د ټکر له امله رامنځته کېږي یا دغه چاره د خطرناکو اټومي چاودنو له امله کېږي یا د ځینو نورو لاملونو له مخې دغه چاره ترسره کېږي.

البته دغه نښېرونه او روایتونه موږ ته د هغې وېرې او رعب په اړه زده کړه راکوي چې له اسمان څخه رابښکته کېږي. پر الله جل جلاله سوګند چې د تندر غږ د انسان په زړه کې سخته وېره پیدا کوي، خو د تندر غږ د روژې د میاشتې له هغه غږ سره هیڅ د پرتلنې وړ نه دی. په هغه نښېر کې چې په تېرو یادونو کې مې یادونه یې وکړه، راغلي دي چې که چېرته مو هغه غږ واورېد، کورونو ته مو ننوځئ، ورونه بند کړئ، کړکۍ وتړئ، په سجده پرېوځئ او ووایئ: ((سبحان القدوس، سبحان القدوس، ربنا القدوس.))

---

[1] - اوزون د فضا هغې برخې ته وایي چې د اوزون توند بوی لرونکي غازونه لري او په همدغه برخه کې تندر او برېښنا هم رامنځته کېږي. (ژباړن)

هغه مهال باور تر لاسه کېږي چې پايلاټونه په عملي ډول پيل شوي وي او يواځې درې مياشتې د مهدي د راڅرګندېدو لپاره پاتې وي. نو د خپلو کورنيو لپاره د اوږدې مودې خوراک چمتو کړئ چې بيا به د پايلاټونو او ستونزو په وخت کې د خوراک راټولولو ته اړتيا نه لرئ. نعيم بن حماد په خپل سند سره له کثير بن مره څخه روايت کوي چې ويل يې: ((د روژې په مياشتې په اسمان کې د ستنې په بڼه يو څيز راڅرګندېږي، وروسته د خلکو په منځ کې شخړې رامنځته کېږي، که چېرته تاسې هغه مهال واوسئ، د خپلې کورنۍ لپاره مو د خپلې وسې په اندازه خوراک راټول کړئ.))

او په خپل سند سره له خالد بن معدان څخه روايت کوي: ((هر چا چې هغه وليدل، نو د خپلې کورنۍ لپاره دې د يوه کال خوراکي توکي چمتو کړي.))

## شپږمه يادونه: له ډلو ډلګيو څخه ځان وساته

ابن حجر په فتح الباري کې له ابو سعيد خدري څخه د دغه حديث په څېړنه کې وايي: ((نږدې ده چې د مسلمانانو ښه او بهترين مال څلوربولي يا وزې واوسي چې هغه له ځانه سره ستونځونو [د غرو څوکو] او لېرې ځايونو ته يوسي، په خپل دين کې پاتې شي او له پايلاټونو څخه تېښته وکړي.))[1]

[1] - فتح الباري، کتاب الفتن، ۱۳/ ۴۰

لیکل شوي دي چې پخوانیو خلکو په ګوښه ناستې «ریاضت» کې اختلاف کړی.... هغه په داسې اوتا کې ده چې په پایلات کې راګیر نه شي، هر کله چې پایلات رامنځته شي، ګوښه ناستی غوره والی مومي.

امام بخاري په خپل صحیح کتاب کې د حذیفه له اوږده حدیث څخه روایت کوي چې ویل یې: «(.... ومې ویل، که چېرې په هغه وخت کې زه واوسم؟ ویې ویل: [د مسلمانانو له ډلې او امام سره شه یانې د هغوی ملګرتیا وکړه.] ومې ویل: [که چېرې هغوی ډلې او امام ونلري؟] حضرت محمد صلی الله علیه وسلم وویل: [له هغو ډلو څخه ډډه وکړه، که څه هم د ونې ریښې وژویې، تر دې چې د مړینې اوتا ته ورسېږې او ته پر همغه اوتا پاتې شې.)»[1]

همدارنګه د ابو هریره له حدیث څخه روایت کوي: «(پایلاتونه به رامنځته شي، ناست کس به له ولاړ کس څخه غوره وي او ولاړ به له هغه څخه چې پر لاره روان وي، غوره به وي او هر کس چې پر لاره درومي، له هغه څخه چې تېزه منډه وهي، غوره به وي. هر څوک چې خپل ځان د هغه پر وړاندې لوړ وګڼي، پایلات به پر هغه واکمن شي، هر څوک چې پناه یا ژغورنځای بیاموموي، پناه دې په کې واخلي.)»

دویم حدیث د حذیفه رضی الله عنه روایت دی چې امام بخاري هغه د «(اذا بقی فی حثالة من الناس)» تر سرلیک لاندې په یوه څپرکي

[1] - صحیح بخاري، کتاب الفتن، ۱۳/ ۳۵

کې راوړي دي. ابن حجر ليکي چې دغه د سرليک يا څپرکي ژباړه يو حديث دی چې طبري هغه له ابو هريره رضی الله عنه څخه راټول کړی دی او ابن حبان هغه صحيح نيولی دی چې رسول اکرم صلی الله عليه وسلم ويل: «ای عبدالله بن عمرو! ستا اوتا به څنګه وي، هغه وخت چې د خلکو د وجودونو په پاتې شونو کې پاتې شئ چې امانتونه او ژمنې له منځه ولاړ شي يا ماتېږي.» په داسې اوتا کې چې حضرت محمد صلی الله عليه وسلم د خپلو دوو لاسونو ګوتې په يو بل کې ننويستې. عبدالله بن عمرو وويل: «د هغه مهال په اړه راته څه وايئ؟ حضرت محمد صلی الله عليه وسلم وويل: [له خپلو ځانګړيو خلکو سره واوسه او عام خلک له ځانه لېرې کړه.]»
دغه پېر چې موږ په کې ژوند کوو، همدغسې دی، ژمنې په کې ماتېږي، امانتونو کې خيانت کېږي او د انسانانو زړونه فاسد شوي دي، خو پرته له هغو کسانو څخه چې د لوی الله جل جلاله په رحمت کې ننوتي دي.

## اوومه يادونه: په پناه غوښتلو، تزکيې او دعا کولو کې تل ډوب اوسه

نعيم بن حماد په خپل سند سره له ابو هريره رضی الله عنه روايت کوي چې رسول اکرم صلی الله عليه وسلم ويل: «د پايلاتونو پر مهال نېکمرغه خلک هغه دي چې پټ وي او د زړه له تله په تزکيه کې

بوخت وي، که چېرته په خلکو کې راڅرګند شي، ونه پېژندل شي او که چېرته د هغوی له منځه پټ يا يې له پامه او نظره لېرې شي، ځوک يې لټون نه کوي او په هغه پېر کې هر غوړ شلوونکی خبره کوونکی يا چټک سپور بدمرغه دی. د هغه پېر له شره نه ژغورل کېږي، مګر هر ځوک چې په سپېڅلې دعا کې داسې ډوب وي لکه ځوک چې په سمندر کې ډوب وي.»

[الفتن: ۷۲۸ شمېره حديث]

نو له همدې کبله د زړه پاکوالی او لکه له ريا، ځانغوښتنې، کبر، رخې او نورو ناروغيو څخه د سپېڅلتيا لپاره چې زړونه وژني، ځان ساتل په کار دي او د پايلاتونو په پېر کې زړه له ثباته وباسي. له لوی الله جل جلاله څخه د سلامتيا او ساتنې غوښتونکی يم.

خو د ځانغوښتنې مينه او لوړې ځوکې او مقام ته رسېدل تر خپلې شا بدبختي او هلاکت لري. بله دا چې په سپېڅلې او ټينګاروونکې دعا کې چې له زړه څخه راوځي او په هغې کې ژبه له زړه سره همغږې وي، تل هڅه کوئ، داسې لکه ځوک چې په سمندر کې لوېدلی وي او دعا يې له زړه، عقله د هر وېښته له بېخه او بلکې له هر غړي يې راوځي. څنګه چې هغه داسې دعا نه کوي او هر خس و خاشاک ته لاس نه ورغځوي، په داسې اوتا کې چې د ډوبېدو پر لوزي درومي. پر الله جل جلاله سوګند چې د پايلاتونو په ورځو کې همدا ګټوره دعا ده، نو له همدې مهاله يې اړينه وګڼئ.

## اتمه يادونه: د مسيحي دجال داستان ياد کړه چې په پايلات کې يې اخته نه شې او تل تسبيح، تحميد، تهليل او تکبير يادوه چې خوراک او څښاک ته اړ نه شې

په يوه روايت کې ابو امامه رضی الله عنه له حضرت محمد صلى الله عليه وسلم څخه نقل کوي او په هغه کې موږ ته دا زده کړه راکول کېږي چې څه ډول د دجال د راڅرګندېدو په ورځو کې له لوږې او تندې سره مخامختيا وکړو، وايي: «.... له حضرت محمد صلى الله عليه وسلم وپوښتل شول، هغه ورځ خلک څه ډول ژوند کوي؟ حضرت محمد صلى الله عليه وسلم وويل: [تسبيح، تحميد او تکبير ورته د خوراک او څښاک غوندې په کار ورځي.]»[1]

څه ارزښتمن حديث دی چې بايد خلک يې په دغو ورځو کې ياد کړي، ځکه چې د يوه عمل بنسټ او ستنه ده چې د دجال په ورځو کې له لوږې او تندې سره مخامختيا (مقاومت) ده، نو له همدې امله د الله جل جلاله يادښت او قرآن مجيد تلاوت مه هېروئ او شپې چې اوس په کې په ارامۍ سره ژوند کوئ، ويښې واوسئ، ځکه په سختۍ او ستونزمن وخت کې تاسې ته ګټه رسوي.

---

[1] - صحيح، له ابو امامه رضی الله عنه څخه د ابن خزيمه او ابن ماجه روايت. په الباني صحيح (۲۴۵۷) شمېره کې ابن خزيمه وايي: «له عبدالرحمان محاربي مې واورېدل چې ويل يې: [دغه روايت ډېر ښه دی چې زده کوونکي يې ياد کړي او کوچنيان يې په ښوونځيو او مدرسو کې ولولي او ياد کړي.]».

همدارنګه د دجال له پایلات څخه د ژغورنې لپاره یو لړ ارزښتمنې وینااوې شته چې د کهف د سورت یادول یا لږ تر لږه د هغه لومړنې لس آیتونه یا وروستني لس آیتونه دي، کله چېرې د دجال د راڅرګندېدو پر مهال هغه ولولئ، تاسې ته هیڅ زیان نه رسېږي. کله چې هغه وویني او د هغه لوري ته وګورئ، د هغه پر لور توکارې تو کړئ (د دغو آیتونو په لوستلو سره)، ځکه هغه یو شیطان دی او پرې د کهف د سورت منځنې یا وروستني آیتونه تلاوت کړئ، له ستونزې او زیانه به یې وژغورل شئ.

## پای

**الحمد لله و کفی و سلام علی عباده الذین اصطفی.**

لکه څنګه چې مو د حمد او ستایلو پر غونډلې (جملې) پیل وکړ، زموږ د کار پای هم د الله جل جلاله پر حمد او ستاینې سره پای مومي. نو په پیل کې د الله جل جلاله ستاینه او په پای کې د هغه ستاینه سمه او پر ځای چاره ده او د هغه پر لوري مخ ګرځول دي.

او وروسته....

دلته قلم له لیکلو څخه عاجزېږي او ژبه له ویلو لوېږي. کتاب پای ته رسېږي او د الله سبحانه و تعالی ستاینه ده چې موږ ته لوی نعمتونه او ارزښتمنې ډالۍ یې رابښلي دي، هماغه بریالی او ښونکی ذات دی.

که چېرته بیا هم څه له ویلو پاتې وي چې ویل شوي وای، موږ پر دې منښته (اعتراف) کوو، ځکه نیمګړتیاوې او ستونزې له انسان سره ملې او ملګرې دي او یواځې الله جل جلاله بشپړ او پوره ذات دی.

نو که چېرته لوستونکی په کتاب کې له کومې ستونزې او نیمګړتیا سره مخ شي، پوه دې شي چې دا تېښته نه ده، بلکې هغه له ما او شیطان څخه نیمګړتیا ده او که چېرته یې ولیدل چې ګټه ورته رسوي، آن پر یوه داسې حدیث پوه شي چې وړاندې پرې نه پوهېده، نو ما دې له دعا څخه نه هېروي. ښایي همدغه دعا زما د نیمګړتیاوو او کمبوتیاوو کفاره شي.

او یو تکي چې د یادونې وړ دي، دا دي چې ووایم: هغه قرینې او نښې چې ((د اسلامي امت مام)) او ((رد السهام)) په کتابونو کې زیاتې شوې، پر هغه څه چې په دې کتاب کې مې وویل او هغه مسئلې مو ته څرګندې دي چې د نړۍ د مام په وروستنۍ برخې کې ژوند کوو، ما دې ته اړ کوي چې پر الله جل جلاله سوګند یاد کړم او د هیڅ استثناء منلو ته اړ نه شم چې موږ د وروستنۍ زمانې د جګړو په وررونو کې ولاړ یو، بلکې د هغې لومړنۍ برخه په عملي ډول پیل شوې ده.

نو د اسلامي امت مام او هغه څه چې د هغه په محاسبه کې له نبوي حدیث او د امت د لویو علماوو له ویناوو څخه په ((رد السهام)) کتاب کې مې یادونه کړې ده، د هغه څه په اثبات سره چې موږ یې لټون کوو او د ورځلوی کوچنۍ نښې چې د هغې پېښېدل مې په ((القول المبین)) کې څرګند کړي دي او د جګړو لومړنۍ نښې له پټې پایلات- د عراق جګړه له کویټ سره- څخه او د کویټ د پادشاه تېښته او له روم سره پناه اخیستنه او د جګړو په پیل کې د هغوی راوستل، وروسته د تورو توغونو راڅرګندېدل او د ګوډ جنرال تر بولنې لاندې د لویدیځ د توغونو راوتل او زموږ له وینا سره د اهل کتابو د وینا همغږي، دغه ټولې قرینې او شواهد موږ دې ته اړ کوي چې د مهدي راڅرګندېدل او څوک چې د ستمګر تر پاچشاهۍ وروسته او په هغه پړاو کې چې موږ په کې ژوند کوو، پوه دې شي او

د هغـه د راڅرګندېدو شـونی احتمـال د سر پـر سـترګو وويـنـي او د «آرماګدون» د جګړې لـومړنۍ لمبې او وړانګې روښـانې شـوي دي او زه يې په ايرو کې سپرغۍ او د اور بڅرکي وينم.

له لوی الله جل جلاله څخه د ځان، ستاسې او ټولو مـسلمانانو لپـاره په دنيا او آخرت کې د سلامتۍ او ژغورنې غوښتونکی يم.

**و اخر دعوانا ان الحمد لله رب العالمين**

**«پای»**

۲۵ تله ۱۳۸۷ لمريز کال

**څپله مينه، جلالکوټ**

# ویپانګه

| ګڼه | ویی | مانا |
| --- | --- | --- |
| | (آ) | |
| (۱) | آتام | طعام، خوراک، کتغ |
| (۲) | آر | اصل، اصیل |
| (۳) | آړ | شرط |
| (۴) | آشا | اژدها |
| | (ا) | |
| (۵) | اپوټه | سرچپه، برعکس |
| (۶) | اخځ | ماخذ، سرچینه |
| (۷) | الواک | نظر |
| (۸) | انده | نظریه، مفکوره |
| (۹) | اوتا | وضع، اوضاع، حال، حالت |
| (۱۰) | اوزار | وسیلې، وسایل، اسباب |
| | (ب) | |
| (۱۱) | بلړ | ضد |
| (۱۲) | برغېلی | برغولی، د دېګي سرپوښ |
| (۱۳) | برلاسي | بریا، بریالیتوب، کامیابي |
| (۱۴) | بریا | کامیابي، بریالیتوب |
| (۱۵) | بسنه | اکتفاء، کفایت |

| | | |
|---|---|---|
| (۱۶) | بلهاري | قرباني، سرورکول |
| (۱۷) | بوللـه | قصيده |
| (۱۸) | بولندوى | قوماندان، آمر، حکم کوونکى |
| (۱۹) | بولنه | قومانده، امر، حکم |
| | (پ) | |
| (۲۰) | پاتمړي | ميراث، ارث، له مړي پاتې شوني |
| (۲۱) | پاتېينه | ناکامي، پاتېوالى |
| (۲۲) | پازه | مسؤليت |
| (۲۳) | پاملرونکى | ملتفت |
| (۲۴) | پايلات | فتنه، شر، فساد |
| (۲۵) | پرتلنه | مقايسه |
| (۲۶) | پرتم | جاه، جلال، شان و شوکت، دبدبه |
| (۲۷) | پرغز | قهر، غوسه |
| (۲۸) | پړاو | مرحله |
| (۲۹) | پژى | مجسمه، کالبوت |
| (۳۰) | پلمه | بهانه |
| (۳۱) | پلیونی | تابعدار |
| (۳۲) | پنډغالى | کيمپ، د راغونډېدو ځاى |
| (۳۳) | پينى | کاينات |
| (۳۴) | پېر | دوره، عصر |

(ت)

| | | |
|---|---|---|
| ۳۵) | تالاو | تالاب، د اوبو ډنډ |
| ۳۶) | تړاو | نسبت، اړيکه، اړه |
| ۳۷) | تړله | د اوبو بند چې د اوبو مخه اړوي |
| ۳۸) | توغ | رپی، بيرغ، جنډه |
| ۳۹) | توکم | نژاد |

(ټ)

| | | |
|---|---|---|
| ۴۰) | ټاپی | موسم، فصل |
| ۴۱) | ټولوژنه | عام قتل، کشتار عام |
| ۴۲) | ټوليز | عمومي |
| ۴۳) | ټوليزوالی | عموميت |

(ج)

| | | |
|---|---|---|
| ۴۴) | جوغه | تاج |

(چ)

| | | |
|---|---|---|
| ۴۵) | چوپړ | خدمت |
| ۴۶) | چورليځ | محور |

(ځ)

| | | |
|---|---|---|
| ۴۷) | ځايناستی | جانشين، نايب |

(څ)

| | | |
|---|---|---|
| ۴۸) | څانګوال | متخصص |

(۴۹) ځپونې ځپونې، ځادر، لوپټه

(خ)

(۵۰) خپلخوښي رضاکار، داوطلب

(۵۱) خواپخې دسترخوان

(ر)

(۵۲) رسونه پيغام

(۵۳) رښتيه حق

(ز)

(۵۴) زياړه ښکنځا، کنځا

(ژ)

(۵۵) ژونکه هسته

(س)

(۵۶) ستونځ قله، د غره څوکه يا سر

(۵۷) سرسام سربداله، نارامه، عصبي

(۵۸) سکالو موضوع

(۵۹) سوبتيا حاضري

(۶۰) سوګند اوړه، ږو، قسم

(ش)

(۶۱) شونتيا امکان، کېدون، احتمال

(ښ)

| | | |
|---|---|---|
| (۶۲) | ښاوی | شاوو |
| (۶۳) | ښکېل | بندي، کېوتی، نښتی |

(غ)

| | | |
|---|---|---|
| (۶۴) | غاټکی | د سترګو غالی یا ځای |
| (۶۵) | غچ | کسات، بدل، انتقام |
| (۶۶) | غوښن | چاغ، څورب |
| (۶۷) | غونډله | جمله |

(ک)

| | | |
|---|---|---|
| (۶۸) | کپله | نوړی، کپ |
| (۶۹) | کښښ | کشش، زړه راښکونتیا ، دلچسپي |

(ګ)

| | | |
|---|---|---|
| (۷۰) | ګانده | راتلونکی، راتلونکې، مستقبل |
| (۷۱) | ګردسره | ټول، له څېرمې، له یوې مخې |
| (۷۲) | ګروهه | عقیده، باور |
| (۷۳) | ګروهمن | عقیدتي، معتقد ، پلیونی |
| (۷۴) | ګوربت | باز، شاهین، ښکاري مارغه |
| (۷۵) | ګوښه ناستی | ریاضت، ګوشه نشینی |

(ل)

| | | |
|---|---|---|
| (۷۶) | لوستنه | مطالعه |

| | | |
|---|---|---|
| ۷۷) | لولنګر | سترې، لالهاند |
| | (م) | |
| ۷۸) | مام | منګ، عمر |
| ۷۹) | ماڼو | کشتيوان |
| ۸۰) | مخامختيا | مقابله، مقاومت، مبارزه |
| ۸۱) | منځۍ | مرکز |
| ۸۲) | منبنته | پر يوه شي اعتراف کول، منل |
| ۸۳) | مهالوېش | تقسيم اوقات |
| | (ن) | |
| ۸۴) | نټه | انکار، نه منل |
| ۸۵) | نټيالی | منکر، نه منونکی |
| ۸۶) | نخچ | نقش، رول |
| ۸۷) | نخچه | نقشه |
| ۸۸) | نږه | خالص، سپېڅلی [له ګوتوهنو څخه] |
| ۸۹) | ښنبېر | آثر |
| ۹۰) | نغوته | اشاره |
| ۹۱) | ننګونه | چېلنج |
| ۹۲) | ننويستنه | بدعت، نوی شی زياتول |
| ۹۳) | نوملړ | لېست |

(و)

| | | |
|---|---|---|
| ۹۴) | واټن | فاصله، مسافه |
| ۹۵) | ورم | پند ، نصيحت |
| ۹۶) | ورځلوی | قيامت |
| ۹۷) | وړاندوينه | پېش بيني، پېشگويي |
| ۹۸) | وړاندويونکی | چې پېشگويي او پېش بيني وايي |
| ۹۹) | ويی | لغت، کلمه |
| ۱۰۰) | وييپوهنود | سيند ، قاموس، ډکشنري |

(هـ)

| | | |
|---|---|---|
| ۱۰۱) | هممهال | عين وخت |

(ی)

| | | |
|---|---|---|
| ۱۰۲) | يادښت | حافظه |
| ۱۰۳) | يولاسی | متحد ، همغږی، متفق |
| ۱۰۴) | يون | سفر |
| ۱۰۵) | يېبروره | حاصلخېزه، ښه حاصل ورکوونکې |
| ۱۰۶) | يېبره | محصول، حاصل |

